تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ رحمہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

## مسئلة التقليد :

## التحقيق في اثبات التقليد :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده . لا نبي بعده ولا رسول بعده وهو خاتم النبيين أما بعد! فاعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾ (سورة النساء آيت : ۵۹)

بله مسئله متنازع فيها مسئله د تقليد ده چې په دې کې د اهل زيغُ جماعات پاکستان کې مودودي جماعت او اشاعت التوحيد او تبليغي جماعت دعوت اسلامي جماعت دا ټول چې داد احنافو اهل حقو ملګرې دي په ثبوت د تقليد کې ائمو و لره دوي قانع دي مخالف په دې کې هغه غير مقلدين چې ځان يې مسمی کړې په اهل حديثو باندې جماعت المسلمين عثمانيان دي او پرويزيان دي دارنګې قاديانيان دي دارنګې شيعه ګان دي شيعه ګان هم د تقليد قائل نه دي هغوي وايي چې د اجتهاد دروازه خلاصه او ګلاو ده او په هر وخت کې الله پاک يو مجتهد پيدا کوي خلک به د هغه متبع وي لکه دوي د خُميني په حق کې د امام او مجتهد عقيده لرله .

مخالف جانب منکرين د تقليد اګر که په وخت د مناظرې کې بيا قول د شرک نه شي کولې قول د حرامو هم نه شي کولې البته خپلو درميانه مباحثو کې د دوي دعوی داده چې تقليد په بعضې مواضعو کې شرک دي او په بعضې مواضعو کې بدعت دي يا حرام دي نو مونږ دلته په يو څو ورقاتو کې د ټولو نه اول دغه دعوی سره د خپلو دلائلو ذکر کړې ده:

د تقليد تعريف

ثاني مبحث استدلالات من القرآن الكريم

ثالث مبحث استدلالات من الاحاديث النبوية او بيا متعدد دلائل چې په هغې کې عقلي او نقلي دلائل جمع شوې دي په اثبات د تقليد باندې .

که څوک منصف وي متعصب نه وي هغه يوه ورقه هم هغه ته کفايت کوي چې وي

ګوري د اول نه تر آخره پورې هيڅ ګنجائش نشته چې انسان د تقليد نه ووځي او چې کوم خلک ځان ته غير مقلدين وايي نو په هر قدم کې هغوي هم په تقليد کې داخل دي مګر دومره خبره ده چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ سره به تعصب لري د هغه له تقليد نه به ووځي او د بل چا په تقليد کې به داخل شوې وي .

بيا آخره کې د مخالف جانب ادله او د هغې مختصر جوابات هغه ما ذکر کړې دي .

## اول : تعريف د تقليد :

تقليد څه شي ته وايي ،لغتاً تقليد : جعل القلادة في العُنق اچول د هار دي په غاړه کې.
شرعاً اطلاق د تقليد کيږي په چند معانيو باندې : اول اطلاق د تقليد :

حکم والٍ بکون فلان قاضياً في موضع کذا .

يو والي فيصله وکړي چې فلانی په فلاني موضع کې قاضي دي ، کذا في جامع الرموز في کتاب القضاء ، تقليد په دغه معنی باندې دلته زير بحث نه دي متنازع نه ده .

دويمه شرعي معني د تقليد چې معروفه ده په اصطلاح د شريعت او علماء کې هغه:

العمل بقول الغير من غير حجة .

د بل چا په قول عمل کول دي من غير حجة من غير طلب حجة په غير د طلب د حجت نه د هغه انسان لکه ما خبره وکړه او تاسو بې له حجته قبوله کړه نو دا تقليد زما شو ګويا کې قول زما مو ځان ته په خپله په غاړه کې هار کړو او مراد دلته د قول نه عام دي چې فعل وي که تقرير وي .

نو خلاصه دا چې عمل په قول د غير عمل په فعل د غير عمل په مسئله ثابته بتقرير الغير بدون طلب الحجة دې ته تقليد ويلې شي .

ولذا قيل : ويلې شوي دي په بعضو شروحو د حسامي کې چې نامي ده :

التقليد اتباع الانسان غيره فيما يقول او يفعل معتقداً للحقية .

تقليد څه ته وايي يو انسان د بل انسان اتباع وکړي په هغه څه کې چې هغه يې وايي يا په هغه څه کې چې هغه يې کوي په حال کون دي متبع او مقلد کې چې عقيده لري په حقيت د

قول د مقلد خپل باندې په غير د نظر او استدلالاتو نه.

في الدليل ، دليل کې نظر نه اچوي قول يې قبلوي :

كَأنَّ هذا المتبع جعل قول الغير او فعله قلادة في عنقه من غير مطالبة دليل.

نو ګويا کې چې دې متبع چې مقلِد دي وګرځوه قول د غير چې مقلَد دي فعل د غير چې مقلَد دي قلادة في عنقه هغه يې په غاړه کې يو هار کړو بغير د مطالبې د دليل نه.

دغه تعريف نامي کړې دي د حسامي شرحې په صفحه ۱۹۰ باندې او هغه مخکې چې کوم تعريف تير شو : العمل بقول الغير من غير حجة کشاف اصطلاحات الفنون جلد ۱ صفحه ۸۴۷ کې کړې دي.

معجم الفلسفي د لغتو کتاب دي جلد ۱ صفحه ۲۹۲ کې د تقليد تعريف په شان د تعريف د نامې کوي چې يعنې د تقليد په تعريف کې اتباع راوړي نو وايي :

التقليد هو اتباع الانسان غيره ، تقليد څه ته وايي اتباع د انسان ده غير لره.

فيما يقول او يفعل . په حال کون دده کې چې :

معتقدا الحقية فيه من غير نظر الى دليل.

نو لغوي معنى سره يې رابطه دا شوه چې ګويا کې دې متبِع چې مقلِد دي وګرځوه قول د غير چې مقلَد دي يا فعل د غير چې مقلَد دي قلادة في عنقه ، يا اسانه تعبير :

قبول قول الغير بلا حجة ولا دليل.

تقليد څه ته وايي قبلول د قول د غير بغير د حجت او دليل نه خودې ځاى کې ګوري دا اهل خصم چې دي اهل حق نه دي متعصبين دي دې لپاره دوي بحث نه کوي چې ځان پرې حق ته ورسوي بس يو ميشن يې روان کړې هغه په تاسو منل غواړي په قبول قول الغير بلا حجة.

دې تعريف باندې يو اعتراض در باندې کوي : او غلط تاويل کوي دلته بلا حجة کې ددې جار او مجرور تعلق ورکوي تر قول الغير پورې نو معنى دا شوه چې تقليد قبلول د قول د غير دي چې دا قول د غير بلا حجته وي نو دا تعصب ددوي دي دغه معنى د تقليد نه ده بلا حجة جار مجرور تعلق تر قول نه دي تر قبول دي قبول د قول د غير قول د غير خو بلا حجته نه

وي هغه سره به ډېر دلائل وي خو دا قبلول ستا به بلا حجته وي ته به تري استدلالات نه غواړي بدون د استدلال او بدون د حجت د طلب نه تا به هغه قبول کړي وي د غه معنی ده .

نن نه تقريباً شل (۲۰) يا پنځه ويشت (۲۵) کاله وړاندې په مردان کې عبد العزيز نورستاني سره مناظره شوې ده په تقليد باندې په هغې کې دا نورستاني متعصب دا عبارت ويلې دی بلا حجة کې جار او مجرور تعلق تر قول د غير نيسي نو قول د غير بلا دليله دی نو تقليد وايي دې ته چې د ائمه وو سره دلائل نشته او تاسو پسې روان يې هلته جانب مقابل کې درانه علماء ناست دي .

هغوی ورته وايي دا بې انصافي ستا ده ظلم مه کوه چې د بلا حجة تعلق تر قبول دی مونږ ترې دليل نه غواړو دا نه چې هغوی سره دلائل نشته دی زمونږ قبلول بلا دليله دی .

هر کله چې تعريف د تقليد تاسو په دغه حواله د معجم الفلسفي او د نامي په حوالې سره تاسې وپيژندو نو د تقليد په تعريف کې اتباع راغله .

اوس د تقليد د اتباع او د اطاعت د دوی مينځ کې څه فرق شته دی او که نه اګر که په اصطلاح عامه کې خو فرق داسې لري چې اطاعت اطاعت الامراء کې مستعمل دی د بادشاه او د حاکم او د امارت اسلامي قانون چې مني نو دې ته مطيع ويلې شي اتباع استعمال شوې ده په دين د محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې او تقليد چې کوم دی دا په فروعي جزئياتو کې د ائمه وو د علماو په اقوالو په تسليم کې استعمال شوې دی .

خو د دې دا معنی نه ده چې ګنې د تقليد اطلاق په اتباع نه کيږي او يا به د اتباع اطلاق په اطاعت نه کيږي او يا به د اطاعت اطلاق په اتباع نه کيږي نه په معنی کې د دې هر يو اطلاق په بل کيدې شي دا سره بعيد نه دی .

وهابيان او منکرين د تقليد ابتدائي دعوی کې تاسو سره په دې کې نزاع جوړوي او ته به هم ترې دا تپوس کوي چې ستا په نزد باندې مخکې له بحث نه تقليد اتباع او اطاعت الفاظ مترادف قريب المعنی دي او که نه دا سره متبائنين دي دوی د لته قول دا کوي چې اتباع او تقليد او اطاعت د دوی مينځ کې سره ترادف نشته مساوات نشته يعني اطلاق د يو په بل نه شي کيدې نو معنی دوی دا کوي چې اتباع ويلې شي تسليم قول الغير مع الدليل ته .

او تقليد ويلې شي تسليم قول الغير بلا دليل ته که دا قول دی بلا دليله ومنه نو دا

تقليد دي او كه د چا قول دي مع الدليل و منه نو دا اتباع ده .

دوي سخت زور په دې خبره لږوي چې د اتباع او تقليد مينځ کې فرق دي چې بيا يې ځوک را ګير کړي چې ګوره دې ځای کې دې د دغه عالم خبره منلې تقليد دې وکړو وايي نه ما خو اتباع کړې ده تقليد خو مانه دي کړي ما خو هغه نه دليل غوښتې دي دليل سره مې د هغه قول منلې دي نو دا اتباع شوه بدون د دليل نه د هغه قول منل دا تقليد شو دا تعريف دوي د ابن قيم د اعلام الموقعين نه نقلوي .

په دغه تعريف کې هم دوي اصول نه لري او خپله هم مقلدين شول پ. ذکر د تعريف کې نه پوهيږم چې دوي ولې ليونې شوې دي چې د تقليد او اتباع په مينځ کې دوي فرق راويستلې دي دا دوي ته نقصان کوي خو په خپل نقصان نه پوهيږي نو چې هر کله دوي د تقليد او اتباع په مينځ کې د مساوات قائل نه شول اطلاق د يو يې په بل جائز و نه ګڼه نو بيا چيلنج ورکړي چې قرآن او حديث کې مونږ ته په تقليد رد و ښايه .

﴿ قَالُوا۟ بَلْ نَتَّبِعُ مَآ أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ ﴾. ( سورة البقرة آيت : ۱۷۰)

دا رد کې پيش کوي :

﴿ يَقُولُونَ يَـٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا ٱللَّهَ وَأَطَعْنَا ٱلرَّسُولَا۠ ﴾ .( سورة الاحزاب آيت : ٦٦).

دا پيش کوي دوي .

نو ځو مره قرآن کريم نه چې دوي رد پيش کوي تقليد باندې هغلته په اتباع د أباوو رد راغلې او دې په ابتداء کې د اتباع او د تقليد په مينځ کې د فرق قائل دي نو رد خو په اتباع راغې په تقليد خو نه دي راغلې او که وايي چې اتباع او تقليد يو شې دي نو ستاسو رسائل مشحون او مملوء دي په دې باندې چې اتباع او تقليد فرق لري نو دا دوي ته نقصان کوي خو احمقان سره را غونډ شوې په خپله ګټه نه پوهيږي د ابن قيم تعريف صحيح دي : تسليم قول د غير بلا دليله دا تقليد دي او مع الدليل اتباع ده .

خو اطلاق د تقليد په اتباع کيږي او د اتباع په تقليد کيږي په خارج کې د دې اطلاق په يو بل کيدې شي کومو اعرابو چې ايمان راوړې دي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه يې طلب د معجزې کړې په طبق نبوت کې هغه ته متبع ويلې کيږي او کومو صحابه وو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قول منلې بدون د معجزې نه بدون د طلب د دليل نه دا ټول و ته مقلدين ويل کيږي .

هر كله چې صحابه ټول مقلدين شول مونږ او تاسې به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قول منو تسليمه وو به يې مع الدليل كه بدون د دليل نه بدون د دليل نه قول الرسول مونږ ته بدون د دليل نه قبول دي او تسليم د قول د غير بلا حجة تقليد دي كنه نو مونږ ټول مقلدين د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ شو او حال دا چې دغه تقليد ته اتباع وويلې شوه قرآن عظيم الشان كې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اطاعت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اتباع د اتباع او اطاعت الفاظ استعمال شوي دي نو د اتباع او اطاعت اطلاق په تقليد باندې كيږي د تقليد اطلاق په اتباع باندې كيږي كله چې دې بلا دليله تسليمي وكړه.

او كه چرته دې مع الدليل دي تسليمي وكړه نو بيا ورته اتباع ويل كيږي او تقليد ورته نه شي ويل كيدې تاسو ته به دا راشي چې كوم خلك د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اقوال بدون د دليل تسليموي دا مقلدين دي په دوي باندې اطلاق د تقليد كيدې شي.

## المبحث الأول : الاستدلالات من القرآن الكريم :

منكرينو د تقليد عوامو ته او خواصو طالبانو ته په ذهن كې يو تشويش اچولې دي دوي داسې يو نظر وركړې دي چې دا تقليد د ائمه وو گڼې داد قرآن او سنت نه خارج يو ثالث څيز دي او داسې يو نظريې وركړې دي چې مقلدين د قرآن او سنت په مقابله كې قول د امام ته ترجيح وركوي نو دا خو افتراء د دوي ده په ټولو اصولو د مقلدينو باندې زمونږ اصول دا خبره كوي چې ادله د شرعې څلور دي اول دليل مونږ كتاب الله گڼو مونږ د كتاب الله مقابله كې سنت هم حجت نه گڼو او ترجيح كتاب الله ته وركوو.

دويم دليل زمونږ سنت رسول دي دريم دليل زمونږ اجماع ده څلورم دليل قياس د مجتهد دي هلته مونږ په اصولو كې وايو چې هغه قياس دليل دي چې د هغې استناد دې ثلاثه وو اصولو ته شوې وي هغه قياس مونږ منو چې كوم د كتاب الله نه وي اصل د هغې سنت رسول نه وي اجماع امت نه وي دا زمونږ ټول اصول په دې باندې قائل دي.

نو دا محض افتراء ده په مونږ باندې چې مقلدين هغه خلك دي چې قول د امام خپل په مقابله د كتاب الله او سنت رسول كې مقدم گڼي كوم ځاى كې مونږ مقدم گڼلې دي كه په كوم څه باندې څوك اعتراض لري نو مونږ سره دې كيني د هغې به ان شاء الله جواب واوري چې مونږ د خپل امام قول د قرآن كريم مطابق درته پيش كړو مخالف نشته كوم ځاى كې امام صاحب

د قرآن او سنت مخالفت کړې دي؟ دا د تقلید تعریف وه چې ذکر شو.

**دا چې تقلید په کومو مسائلو کې ګنجائش لري او کومو کې نه لري:**

نو یو مسائل منصوصه دي بل مسائل غیر منصوصه دي هر چې مسائل منصوص دي هغه بیا په دوه (۲) قسمه دي: متعارضه بل غیر متعارضه.

خامخا به تقلید کوي کنه هلته آحادیث متضاد راغلي لکه مسئله د رفع الیدین دا منصوصي ده نص وارد دي په مسئله د رفع الیدین کې چا قیاس پسې ذهاب نه دي کړې او نه دلته قیاس دخل لري او نه په عقل دا مسئلې ثابتیږي که څوک امام ابو حنیفه رحمه الله پسې ځي نصوص په آحادیثو کې لري که څوک امام شافعي رحمه الله پسې ځي هم نصوص په آحادیثو کې لري نو دا مسئله منصوصي ده خو متعارضه ده یو اځې د ابن مسعود او د ابن عمر رضي الله عنهما د روایتینو تعارض نه دي.

د ابن عمر رضي الله عنه په خپل روایت او عمل کې تعارض دي نو دا مسئله منصوصي ده خو متعارضه ده د رفع د تعارض لپاره لابد من التقلید د چا قول به مني چې تا ته دلته تعارض ختم کړي او یوه لاره درو ښايي دا مسئله منصوصه متعارضه شوه.

بله مسئله منصوصه غیر متعارضه ده او دا په دوه قسمه ده یو هغه منصوصه غیر متعارض ده چې محتمل د احتمالاتو شتی وو نه وي.

بله هغه مسئله منصوصه غیر متعارضه ده چې په هغې کې احتمالات شتی وي.

مسئله منصوصه غیر متعارضه محتمله د احتمالات شتی وو په هغې کې د رفعې د احتمالاتو لپاره او د تعیین د احتمال لپاره لا بد من التقلید تعارض نه وي په کې یو متن راغلې وي په هغه متن کې اختلاف وي او احتمال د ډیرو معانیو لري که یوه معنی اخلي یوه مسئله راوځي او که بله معنی اخلي بله مسئله راوځي دلته د رفع د احتمالاتو لپاره او د تعین د احتمال واحد لپاره لا بد من التقلید.

یو قسم منصوص پاتې شو چې منصوصه وي غیر متعارضه وي محتمل د احتمالاتو شتی وو نه وي هغلته بیا د تقلید ګنجائش نشته دي مثلاً پنځه مونځونه فرض دي په دې کې که تا ته د امام قول وي که نه وي تا ته طبقه عن طبقه په تواتر پاتې ده چې هغه فرضي مونځونه د ورځې پنځه دي او په دغه دغه اوقاتو باندې دي په دې کې هیڅ نزاع نشته ده یو

روايت هم څوک متعارض نه شي پيش کولې چې مونځونه شپږ دي او چې کوم وارد دي په هغې کې هم څه نزاع نشته البته په تعيين د اوقاتو کې مسئله منصوصې ده مسئله غير متعارضه ده خو محتمله د احتمالاتو شتى وو ده هغه امامت د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام دا يو حديث چې وګورې نو تاته خپله په اوقاتو کې اختلاف ښکاره کيږي ولې د مازيګر مونځ يې وکړو په هغه وخت باندې چې پرون يې په کې د ماسپخين مونځ کړې وه دا د حديث الفاظ دي.

او بل روايت کې دا راځي د ماسپخين مونځ يې په دويمه ورځ په هغه وخت کې وکړو چې پرون يې په کې د مازيګر اول مونځ کړې وه په دې د چا قول دې چې د ماسپښين او د مازيګر په مينځ کې تداخل دې او داسې يو وخت ده چې دواړه په کې کيږي.

داد چا مذهب دې داد هيچا رايه هم نه ده د اهل حديثو هم دا رايه نشته دې نو حديث صحيحه د امامت د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام اول او آخر مونځونه ورته ښايي چې دې مينځ کې تا ته وخت دې الفاظ يې دغه دي چې د ماسپښين مونځ يې په دويمه ورځ په هغه وخت کې وکړو چې په کوم وخت يې پرون د مازيګر مونځ کړې وه.

نو پرون د مازيګر مونځ شوې وه مثل اول ختم وه مثل ثاني شروع وه صباته يې د ماسپښين مونځ په دغه وخت کې وکړو نو د ماسپښين وخت مثل ثاني ته اوږد شو کنه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ مذهب ترې ثابت شو چې مثل ثاني د ظهر نه دې ليکن هغه بل جانب چې استدلالات ترې کوي هغه يې د پروني امامت نه کوي همدې حديث نه يې کوي چې پرون يې دې وخت کې د مازديګر مونځ کړي چې د مازديګر يې وکړو خو مثل ثاني مازديګر شو کنه.

نو ګورې دا تعارض نه دې يو شان حديث دې ليکن محتمل د احتمالات شتى وو دې د رفع د احتمالاتو لپاره او د تعين د احتمال لپاره لابد من التقليد.

خلاصه دا شوه مسئله منصوص مسئله غير منصوص مسئله منصوص متعارض غير متعارضه مسئله غير متعارضه محتمل د احتمالاتو او محتمل د احتمالاتو نه وي کومه چې منصوص وي غير متعارضه وي محتمل د احتمالاتو نه وي تقليد جائز نه دې بيا کومه چې منصوص وي غير متعارض وي محتمل د احتمالاتو وي دلته تعين د احتمال لپاره لا بد من التقليد تقليد نه لابدي ده کومه چې منصوص وي خو متعارض وي لا بد من التقليد.

او څه مسائل غیر منصوصي دي هر چې مسائل غیر منصوصي دي هلته بیا لا بد من التقلید مطلقاً نص نشته څه به کوي هغه مسئله کې جزیه تاته راپیښه شي او نص کتاب الله کې او سنت رسول کې نه وي نو خود بخود به په هغه مسائلو کې د چا قول پسې ځي په هغې کې به هم اقوال د عمر فاروق رضي الله عنه وغیره راشي یا د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم بذات خود خپل اقوال به راشي چې کوم یو ځای کې تاسو کتاب الله او سنت رسول نه وي نو هلته تاسو لاړ شي په کوم چې فیصله صالحینو کړې وي که هغې کې نه وي :

فاجتهد برأيك ، په خپله رایه دې اجتهاد وکړي خو دا خطاب مجتهد ته وه کولې شو تا کې قوه د اجتهاد نشته خپله د مجتهد قول پسې ذهاب وکړه .

شیخ حسن جان صاحب - نور الله مرقده - به کله غصه شو ویل به یې چې هغه احمق انسان چې هغه نصوصو کې تعارض نه لا خبر نه دي چې ګنې نصوص هم متعارض دي یو خو عوام دي عوامو ته خو چې دا نظر ورکړې شي چې کتاب الله او سنت رسول شته امام ته څه ضرورت دي نو هغوي وایي چې ریشتیا وایي کنه قرآن او سنت چې وي بیا امام صاحب ته په کې څه ضرورت دي نو جاهلان خو پوهیږي نه چې آحادیثو کې تعارض دي .

یوائې بخاري شریف کې په سلګونو تعارضات دي یو ځای کې یو روایت دي بل ځای کې بل روایت راغلي دي عوام خو ددې نه خبر نه دي لا علمه دي هر چې علماء او طلباء دي شیخ حسن صاحب رحمه الله به غصه شو چې دا وهابي کیږي دا لوي احمق وي دې واي بنه پوهیږي چې په روایاتو کې تعارض شته دي او دې دغې تعارض د دفعې لپاره د چا قول ته ضرورت دي نو بیا د امام صاحب سره څه تعصب را اخیستي چې دا مذهب پریږدي او په بل کې داخلیږي یو کې خو به خامخا ننوځي چې رفع د تعارض کوي .

اول دلیل چې مونږ پیش کوو دې کې به د اهل حدیثو اصل مات شي زمونږ اصل څه دي چې ادله څو دي اربعة څلور دي او ددوي اصل دي چې ادله دوه دي کتاب الله سنت رسول دې نه اخوا دوي دلائل نه مني چې کله دې د سنت رسول نه اخوا یو دلیل هم پیدا کړو بس په دوي رد راغلو خود بخود مثلاً نبي اکرم صلى الله عليه وسلم امر وکړو چې تاسو ما نه بعد په صدیق اکبر رضي الله عنه پسې اقتداء وکړي ما نه بعد تاسو عمر فاروق رضي الله عنه پسې اقتداء وکړي .

تاسو دده متبعين شي دا خود بخود په اهل حديثو رد دي ځکه هغوي وايي ادله دوه (۲) دي چې دوه (۲) دي قول د صديق اکبر رضي الله عنه او قول د عمر فاروق رضي الله عنه په سنت رسول کې نه دي داخل دا خود بخود په هغوي باندې رد دي.

سورة نساء آيت نمبر :۵۹ :

دا فرق بايد هم ښکاره وي چې زمونږ څومره استدلالات وي اکثراً مُصَدَّرْ به وي په يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا باندې او يا به هغه حال د بيان د مؤمنينو وي.

او ددوي چې څومره استدلالات راځي وي ګوري دا به د مکې معظمې د مشرکينو باره کې نازل شده ايات پيش کوي يا به يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ، نو په سترګو روند شي يا اهل الكتاب وايي يا اهل پشاور خو نه وايي يا اهل افغان خو نه وايي نو دا يا اهل الكتاب باندې به مصدر وي.

نو چونکې دوي خوارج دي آيتونه نازل شده په حق د کفارو کې په مؤمن چسپانوي نو دوي اوسه پورې د اهل کتابو او د يهودو او د عيسويانو او د مشرکينو باره کې نازل شده آيات او هغه چې يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا باندې خطاب وي هغه نه شي بيلولې.

زمونږ دلائلو ته ګورئ په يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا سره به خطاب کوي :

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ اې د ايمان والو.

﴿أَطِيعُوا اللَّهَ﴾ اطاعت وکړي د خداې تعالى، اطاعت الله څه شي دي اطاعت د کتاب الله دي.

﴿وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ او اطاعت وکړي د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ، اطاعت الرسول څه شي دي هغه اطاعت د سنتو د هغه دي.

﴿وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ اطاعت وکړي د أُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ستاسې نه.

د معروفو صحابه کرامو په نزد باندې مراد د اولى الامر نه فقهاء دي اطاعت وکړي د أُولِي الْأَمْرِ د خاوندانو د فقه ، مِنكُمْ ستاسې نه.

دلته يو تفسير د عبد الله ابن عباس رضي الله عنه دي او بل تفسير دي د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه ، حضرت ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي أُولِي الأَمْرِ مِنكُمْ دا نازل په حق د امراء د سرايا وو کې دي د يو سرېي او د يو کنډک د امير او د يو قومندان متعلق چې تاسو جهاد کې د قومندان خبره ومنئ ، دا تفسير د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه دي .

تفسير د عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما دا دی :

أُولِي الأَمْرِ مِنكُمْ أولی الفقه منکم اولی العلم منکم .

تاسو کې چې علماء دي فقهاء دي د هغوي اطاعت وکړي .

نو اوس چې ته دا دليل پيش کوي ضرور درته د حضرت ابو هريره رضي الله عنه هغه تفسير مقابل کې پيش کوي چې دا خو امراء د سرايا وو يا دوي حکماء يا دوي امارت اسلامي يا دوي دا عالم ار فقيه نه يا دوي .

نو لنډ جواب به دا وي چې آيا تفسير د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په مقابل د تفسير د عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما کې څه مثابت او منزلت لري انصاف په کار دي په صحابه کرامو کې د هر چا خپله رتبه ده د حضرت ابو هريره رضي الله عنه تفسير په مقابله د تفسير د عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما کې به څو مره اهميت ولري .

هغه خو رئيس المفسرين في التفسير دي په تفسير کې د حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما تفسير چې متعارض راشي د تفسير د حضرت عبد الله ابن مسعود او د ابن عمر او د حضرت عبد الله ابن الزبير د ابو موسى الاشعري او د ابو سعيد الخدري رضي الله عنهم دې ټولو نه مقدم دي سواد خلفاء اربعه وو نه چې هغوي ته امت مسلمه په يو ځانته عقيده قائل دي ګڼي داسې علماء شته چې په تفسير کې قول د حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه په خلفاء هم مقدم ګڼي نو په تفسير کې عبد الله ابن عباس رضي الله عنه امتيازي شان لري .

قول د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دده مقابله او معارضه نه شي کولې صحيح دي هلته هم حديث راغې روايت موقوف راغې دلته هم ترجمه موقوفه ثابته شوه اوس دا دواړه ته په معارضه کړه نو معارضه کې تفسير د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه د تفسير د ابن عباس رضي الله عنه نه شي کولې دا چې مونږ وايو مراد د اولی الامر نه فقهاء دي علماء دي تفسير الدر المنثور

جلد ۴ صفحه ۵۰۴ سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

وأخرج ابن جرير وابن المنذر وابن أبي حاتم والحاكم عن ابن عباس في قوله : وَأُوْلِي الْأَمْرِ مِنكُمْ يعني اهل الفقه والدين و اهل طاعة الله الذين يُعلِمون الناس معاني دينهم .

هغه چې خلكو ته د دين معاني ښايي .

ويأمرونهم بالمعروف وينهونهم عن المنكر فأوجب الله .

بس واجب كړو خداى تعالى .

طاعتهم على العباد . د فقهاء علماء طاعت خداى تعالى لازم كړو په عبادو باندې دا مونږ چې تقليد ته واجب وايو نو دا دغه ځاى نه چې ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لفظ د وجوب استعمال كړي .

ما يو كس ته دا آيت پيش كړي وه عالم وه نو ما ته يې وويل چې بيا په اطيعوا امر متوجه اولى الامر ته شو نو امر د وجوب تقاضا كوي بيا خو د قرآن كريم نه چې امر ثابت شي بيا خو تقليد فرض شو ته خو ورته فرض نه وايي واجب ورته وايي نو ما وويل چې زه واجب ورته ځكه وايم چې دې كې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تفسير منقول دي نو شبه راغله كه د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تفسير دلته نه وايي چې امراء د سرايا و مراد دي نو دا به فرض وايي بيا منكر به يې كافر وايي خو چونكې دلته شبه راغله .

هغه مخكې چې استدلالات تقسيم شوې وو څلورو انواعو لره يو دليل وي **قطعي الثبوت قطعي الدلالة** نو هغه په صورت د امر كې افاده د فرضو وركوي او په صورت د نهي كې افاده د حرمت وركوي .

دويم دليل دي **ظني الثبوت ظني الدلالة** هغه په صورت د امر كې نُدب راولي او په صورت د نهي كې كراهيت راولي .

دريم دليل دي **قطعي الثبوت ظني الدلالة** او څلورم **ظني الثبوت قطعي الدلالة** دا دواړه په صورت د امر كې افاده د وجوب وركوي په صورت د نهي كې كراهيت تحريمي راولي دا اصول دي زمونږ دا دليل دلته قطعي الثبوت دي كون دې ايت **من القرآن قطعي الثبوت** دي

خو ليکن ظني الدلالة دي دلالت يې په ثبوت د تقليد باندې ظني دي قطعي نه دي ولې ځکه دلته تفسير د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه موجود دي نو شبه راغله چې هغه معنى اوس دلته مراد شوه او که فقهاء مراد دي شبه راغله.

نو دليل قطعي الثبوت او ظني الدلالة په موضوع ستا باندې هغه په صورت د امر کې افاده د وجوب کوي نو اطيعوا امر راغلې افاده د وجوب د تقليد يې وکړو او د عالم او فقيه خبره منل دغې ته تقليد وايي تقليد د علماو خبره منل.

حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه په دغه معنى کې متفرد نه دي ده سره صحابه کرام او تابعينو کې چې کوم عمده دي کوم فقهاء دي کوم مشهور في التفسير دي هغه ټول تابعين ده سره ملګرې دي چې مراد له اولى الامر نه دي مقام کې امراء د سرايا و نه دي بلکې فقهاء مراد دي.

په دغه مذکوره صفحه باندې د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه روايت منقول دي:

واخرج ابن ابي شيبة وعبد بن حميد والحكيم الترمذي في نوادر الاصول وابن جرير وابن المنذر وابن ابي حاتم والحاكم وصححه عن جابر بن عبد الله في قوله واولى الامر منكم قال أولي الفقه وأولي الخير.

خاوندان د فقه ستاسې چې دي د هغې اطاعت وکړي.

دريم امام مجاهد تابعينو کې معروف في التفسير تفسير ابن جرير الطبري جلد ۷ صفحه ۱۷۹:

حدثني سفيان بن وكيع قال حدثنا ابي عن علي بن صالح عن عبد الله بن محمد بن عقيل عن جابر بن عبد الله قال حدثنا جابر بن نوح عن الاعمش عن مجاهد في قوله أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ قال اولى الفقه منكم.

خاوندان د فقهې ستاسو کې.

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۷ صفحه ۱۸۰:

حدثني محمد بن عمرو قال حدثنا ابو عاصم عن عيسى عن بن ابي نجيح واولى الامر منكم قال اولي الفقه في الدين والعقل .

خاوند ان د عقل او فقه مراد دي د هغوي اطاعت وکړي .

پنځم : عطاء بن السائب رضي الله عنه فرمايي چې مراد ترې نه فقهاء دي :

حدثني يعقوب بن ابراهيم قال حدثنا هشيم قال اخبرنا عبد الملك عن عطاء بن عبد الملك السائب في قوله أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ قال اولى العلم والفقه.

دارنګې د عطاء بن ابي رباح هغه هم رايه داده چې مراد ترې فقهاء دي تفسير الطبري جلد ۷ صفحه ۱۸۱ :

حدثني المثنى قال حدثنا عمرو بن عون قال حدثنا هشيم عن عبد الملك عن عطاء واولى الامر منكم قال الفقهاءُ والعلماءُ .

دارنګې د حسن بصري رحمه الله رايه داده چې مراد ترې نه علماء دي .

حدثنا الحسن بن يحيى قال اخبرنا عبد الرزاق قال اخبرنا معمر عن الحسن في قوله وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ قال هم العلماء .

دارنګې ابو العالية رحمه الله فرمايي چې مراد ترې نه علماء دي :

حدثني المثنى قال حدثنا اسحاق قال حدثنا ابن ابي جعفر عن ابيه عن الربيع عن ابي العالية في قوله وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ قال هم اهل العلم .

ابي العالية حسن بصري عطاء ابن ابي رباح عطاء ابن السائب ابن ابي نجيح امام مجاهد عبد الله بن عباس رضوان الله عليهم اجمعين ددوي ټولو دا رايه ده چې مراد د اولی الامر نه فقهاء دي دا په دوه (۲) طريقو په دوي رد شو دوي وايي : اہل حدیث کے دو اصول کتاب اللہ اور سنت رسول ، نو رد يې وکړو وربانديې چې دريم هم پيدا شو اطيعوا الله واطيعوا الرسول دا ستا خبره کے دو اصول په کار دا وه چې اولى الامر يې بيا نه وي ذکر کړې بس خبره به خلاصه وه دا چې رب کريم اطاعت د اولی الامر ذکر کوي دا ددوي د بنيادي اصل بطلان کوي چې ادله

دوه نه دي دريم هم پيدا شو چې هغه قول د فقيه منل دي.

## إيرادات مع الجوابات :

اول اعتراض درباندې دا کوي چې مراد د اولی الامر نه دلته اُمراء د سرايا وو دې د هغې جواب ذکر شو د ابن عباس او د تابعينو په اقوالو کې چې قول د ابوهريرة رضي الله عنه په مقابله د قول د ابن عباس رضي الله عنه څو مره اهميت لري هغه دې وهابيان خپل ګريوان کې سر ښکته کړي او فيصله دې خپله وکړي.

دويم اعتراض دا کوي چې واولی الامر منکم اولی الامر دا جمع ده اولوا جمع د ذو ده کنه من غير لفظ نو اطاعت الله اطاعت الرسول اطاعت د علماءنو وايي دا خو د اجماع منل شو دا وهابيان خپلو کې هم سره وران دي د پنجاب وهابيان ډير متشدد دي هغوي اہل حدیث کے دو اصول کتاب اللہ اور سنت رسول چغې وهي دوي هم په خوله دا چغې وهي خو چې راتينګ يې کړي نو اجماع بيا مني وايي دا خو اجماع ده او اجماع مونږ منو اولی الامر علماء په يوه خبره راغونډ شول منه يې.

نو د هغې جواب به داسې کوي چې دلته اطيعوا جمع راغلې ده و اولی الامر دا هم جمع راغلې او جمع مقابل د جمع کې تقسيم د احادو په احادو قبلوي دا يوه معقوله قاعده ده نو معنی دا شوه چې اطاعت وکړي هريو د يو فقيه داسې نه شي کيدې چې ته به راځې د ټولو فقهاو اطاعت به کوي د فقهاو عبارات به متضاد وي څنګه به اطاعت کوي يو به په خوب اودس ماتوي بل به يې نه ماتوي دغه وخت کې به څه کوي يو به په وينه اودس ماتوي بل به يې نه ماتوي نو بيا به په اوړي کې يو مذهب ته ځې او په ژمي کې به بل مذهب ته ځې.

چې او به ښې لګيږي بيا به په وينه اودس مات وي حنفي به وي او چې ژمې شي بيا به اودس نه يې مات کنه بيا به شافعي يې بيرته ته خود هوا او د خيټې متبع شوې ته خو د دليل متبع نه شوې او نه د رايي نو جمع په مقابل د جمعې کې تقسيم د احادو په احادو قبلوي هريو د يو فقيه ومني دغه يې نچوړ دی د ټولو نه منلې کيږي د هغوي اقوال متضاد دي.

يو وخت د بحث په تيم کې ما ددوي يو ملا ته ويلې وه ما ته يې وويل، چې دا جوړ شوې قواعد دي دا مونږ نه شو منلې چې جمع مقابل د جمعې کې تقسيم د احادو په احادو قبلوي

ما وويل دا به ته خپله مني ځنګه يې نه شي منلې چې ژاړي او که خاندي دا به ته مني وايي دا خو خلکو جوړ کړې دي دا په کوم ځای کې راغلي چې جمعه مقابل د جمعې کې تقسيم د احادو په احادو قبلوي .

ما ورته وويل : وامسحوا برؤسكم ، امر راغلی دي د سر مسحه فرض ده وايي هاو ما ورته وويل دليل راته پيش کړه وايي : وامسحوا برؤسكم ، ما وويل رؤس جمع ده اقل د جمعې دري دي هريو اودس والا به دري درې (۳) سره مسحه کوي هله به يې اودس صحيح کيږي ځکه جمع راغله دلته چې په ما اعتراض کوي چې جمع راغله د يو فقيه قول تری نه ثابتيږي ټول فقهاء به مني لا اقل دري خو به مني اګر که مونږ دري منلې دي امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ امام ابي يوسف امام محمد رَحِمَهُمَا اللهُ زمونږ مذهب جوړ دوي نه دي کنه .

خو هسې دوې ته تحقيقي جواب دادی چې دا جمع مقابل د جمعې کې ده تقسيم د آحادو په آحادو باندې نو دليل يې وامسحوا پيش کړو ما وويل چې وامسحوا برؤسكم کې رؤس جمع ده او ته جمع مقابل د جمعې کې تقسيم د آحادو په آحادو قبلوي دا قاعده مني نه چې مني يې نه هريو سري به درې دري سره مسحه کوي نص داثابتوي بيا غلي شو .

نو خپله دې ته جوړ شو چې جمع مقابل د جمع کې تقسيم د آحادو په آحادو قبلوي هر سړي يو سر مسحه کړي دلته هم اطيعوا جمع ده اولي الامر جمع ده جمع مقابل د جمع کې تقسيم د آحادو په احادو قبلوي هريو د يو فقيه خبره ومني دا دويم اعتراض وه ددوي دې ځای باندې .

دريم اعتراض دادی چې وګوره اطيعوا اطيعوا هلته ذکر د اطيعوا مکرر اولي الامر منکم دلته اطاعت نه دي راغلي چې نه دي راغلي نو معنی دا شوه چې د فقيه هره خبره نه شي منلې بلکې ته به په کې سوچ کوي چې کومه خبره موافق وي د کتاب الله او سنت رسول سره قبلوي به يې کنه رد وي به يې نو چې ورته وايي څه نه پته لګي وايي دلته يې اطيعوا مکرر نه کړو کنه دا خو د قرآن عظيم الشان طرز او طريق دي بليغ او فصيح کلام دي درې ځل چې اطيعوا مکرر شوې واي په ژبه به ځومره درونډ لګيدې لکه اطيعوا الله و اطيعوا الرسول واطيعوا اولي الامر منکم دا خو به تکرير وه له دغه تکرير نه ځان ساتلې شوې دي او هغه واو د عطف لپاره دي

او عطف هم ددې لپاره دي چې اولی الامر دلته منصوب ولې دي دا په الرسول عطف دي چې عطف شو نو عامل د الرسول په ده کې عامل شو کنه اطیعوا الرسول واطیعوا اولی الامر که.

او که ته داسې ترک د لفظ د اطیعوا نه استدلال په دې باندې کوي چې د اولی الامر هره خبره به منل نه وي قرآن عظیم الشان کې دوه ځایه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ متعلق دا راځي اطیعوا الله والرسول لفظ د اطیعوا په الرسول کې ترک شوې دي نو اوس به دا معنی وي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به هره خبره نه منو سوچ به کوو په کې چې کومه سمه وي منو به یې او چې کومه سمه نه وي بیا به یې نه منو.

د ترک د اطیعوا نه چې دا استدلال کوي نو هلته په والرسول کې هم ترک د اطیعوا راغلې دي کنه هم دا به وایي چې والرسول عطف دي په الله باندې هغه معمول منصوب د اطیعوا دي دلته اطیعوا مکرر دي ددې خبرې ایجاد ورته رستمي کړي هغه دوي کې دوه درې تکي مُلا دي چې ګوره دا اطیعوا رانغي نو دا دریم اعتراض شو.

څلورم اعتراض دادی وایي دا وروستو آیت په تاسو باندې رد کوي فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ که په جګړه شوې په څه شي کې فَرُدُّوهُ رد کړي مسئله متنازع فیها شي متنازع فیه إِلَى اللَّهِ الی کتاب الله وَالرَّسُولِ الی سنة رسول إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا.

وایي دا آیت خو ثابتوي چې مسئله لانجه منه به کتاب الله او سنت رسول ته ردوي دا خویې نه دي ویلې چې فقه ته به یې رد کړي اولی الامر ته به یې رد کړې وایي دا روستي ایت خپله په تاسو رد دي.

نو جواب به دا وي چې يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ اطیعوا الله و اطیعوا الرسول واولی الامر منکم دا خطاب عام دي چا ته یا ایها الذین آمنوا ته چې په چا د ایمان اطلاق کیږي هغه ټولو ته دا خطاب دي او که ته وایي چې مقلد خو د امام خبره مني قرآن او سنت باندې استدلال نه شي ولې نه شي دا خبره غلطه مشهوره شوې ده مسئله چې منصوصي وي غیر متنازعه وي محتمله د احتمالاتو نه وي دا په سونو مسائل دي هغې

کې خو هر سړي کولې شي چې کتاب الله نه اخذ وکړي زه مؤمن یمه ته مؤمن یې مقلد یې په مسئله منصوصي غیر متعارضه کې ته نص نه اخذ کولې شي کنه دا مونږ مقلدین یو څومره ځایونو کې مونږ په توسل او په دې مسائلو کې اخذ کوو په تبرک کې یې کوو.

دا او سه پورې مونږ چې دلائل وایو مقلدین یو کتاب الله او سنت رسول نه اخذ کوو ولې کوو ځکه یې کوو دا مسئله د ائمه وو مینځ کې اختلافي نه وي اتفاقي مسئله وي نصوص وړباندې وي تقلید ته ګنجائش په کې نشته نو دلته خطاب عام دي چې په چا د ایمان اطلاق کېږي نو تر دې ځای پورې چې اولی الامر منکم اطاعت د فقهاو به کوي.

چې کوم سړي اطاعت د فقهاو نه کوي او اطاعت د فقیه ته شرک او ناروا وایي د قرآن کریم دې نص نه انکار دي پاتې شو **فان تنازعتم** دلته بل خطاب راغې ګوري **یا ایها الذین امنوا** دا یو خطاب دي **فان تنازعتم** که تاسو په جګړه شوې دا تاسو کې خطاب دوي وایي چې **یا ایها الذین آمنوا** نه دي ای مؤمنانو که په جګړه شوي نه تفسیر ته لاړ شه ځان په خبره پوه کړه د قرآن کریم غلطې ترجمې مه کوي **فان تنازعتم** دا خطاب دي **اولی الامر** ته فقهاء مجتهدینو ته دا خطاب دي د **اولی الامر منکم** خطاب عام د مؤمنینو وه اوس دې ځای پورې خطاب خلاص شو.

**فان تنازعتم** أي اولی الامر ای فقهاء ای مجتهدینو که د تاسو په یوه مسئله کې لانجه راغله **فردوه الی الله والرسول** تاسو به بیا مسئله کوم ځای نه را اخلي فقهاء مجتهدینو تاسو به یې بیا کتاب الله او سنت رسول ته ردوي.

نو دا خطاب مجتهدینو ته دي مقلد او عامو مسلمانانو ته نه دي دلیل په دې باندې هیڅ دلیل ته ضرورت نشته د عقل په لحاظ سره **تکلیف بما لا یطاق** چې کوم دي دا ظلم دي عدل نه دي خالق داسې نه کوي چې څوک د یو شي طاقت نه لري او هغه یې مکلف کړي دا خو عدل نه دي دا خو ظلم دي اله العالمین **تکلیف بما لا یطاق** نه کوي.

عام عباد مثال په طور زه تاسو ناستو طالبانو کې یو کشر طالب پاڅوم نو چې پاڅیده دا به په **یا ایها الذین آمنوا** کې داخل وي او که نه به وي داخل دې کنه که ته وایي چې ان

تنازعتم دا خطاب چا ته دي یا ایها الذین آمنوا ته دي اوس معنی دا شوه چې ای فلانیه تا ته چې مسئله پیښه شوه رد یې کړه کتاب الله او سنت رسول ته نو دا اوس مسئله سنت رسول ته ردولې شي دده په وس کې ده دا خبره دا خو کشر طالب ده کنه تکلیف بما لا یطاق خالق کوي چې دده وس نه کیږي او خالق ورته وایي چې وي کړه.

یو عام سړي چې بازار کې سبزي خرڅوي یا نور څه کار کوي نو یا ایها الذین امنوا کې داخل دي که نه دي داخل دي کنه فردوه الی الله والرسول تماتړ چې خرڅوي هغه هم رد د مسئلې کتاب الله او سنت رسول ته کولې شي د عقل په لحاظ باندې دا خو تکلیف بما لا یطاق دي دا په کروړونو عام جاهل خلک چې بې علمه دي دوي د مسئلې رد کتاب الله او سنت الرسول ته څنګه وکړي.

دا زمونږ حنفیان په ځای پریږده ددوي وهابیان خو تول په تولـه ملایان نه دي کنه کله هم چې مباحثه او مناظره وه نو پنځه به ملایان ناست وي پنځوس به عام وهابیان ناست وي چې دې ځای ته راورسیده دا ملا به په ځای پریږدي او امي به د غوږ نه راونیسي یو مسئله به ورته د طلاق او عتاق مخې ته واچوي وایي دا لږ کتاب الله ته رد کړه دا سنت رسول ته رد کړه چې دا څنګه ردیږي ردولې شي نه شي ردولې تکلیف بما لا یطاق خالق کوي نه دا واضح دلیل ددې خبرې دي چې دا خطاب اولی الامر ته دي ای فقهاء مجتهدینو تاسو مسئله بیا رد کتاب الله او سنت رسول ته کړي دوي د قرآن کریم معنوي تحریف کوي په هر ځای کې کړي دي چونکې په نحو صرف باندې پوهیږي نه د خطاباتو د ضمیر په ارجاع پوهیږي هم نه او د ځان نه یې راجع کوي چې چا ته یې راجع کړو یو مشن روان دي.

زما دغه تاویل تفسیر جصاص کړي دي احکام القرآن للجصاص جلد ۳ صفحه ۱۷۷ کې مذکور دي:

**فان تنازعتم في شيء فردوه الى الله والرسول يدل على ان اولى الامر هم الفقهاء.**

اولی الامر فقهاء دي وایي دا بل دلیل شو په دې د ابن عباس رضي الله عنه د ترجمې تائید پیش کوي که مراد له دې نه امراء د سرایا او وایي اکثرا قومندان د جهاد امي سړي وي د وخت

والیان او ګورنران علماء نه وي رد الى کتاب الله او سنت رسول باندې نه پوهیږي نو که مراد له اولى الامر نه اُمراء د سرایاوو واخلي نو هغوي ته بیا د ان تنازعتم خطاب څنګه متوجه کوي چې امي قومندانانو تاسو مسئله قران او سنت ته راجع کړي هغوي چیرته راجع کولې شي.

او که ته ترې فقهاء واخلي مجتهدین واخلي په رد پوهیږي نو دې وایي دد غه فان تنازعتم د خطاب نه پته لګي چې مراد له اولى الامر نه علماء دي اُمراء د سرایاوو نه دي:

لانه امر سائر الناس بطاعتهم. ټولو خلکو ته خدای امر کړي په طاعت د فقهاء باندې.

ثم قال فان تنازعتم في شيء فردوه الى الله والرسول.

فامر. نو امر وکړو خدای تعالى، اولى الامر لره برد المتنازع فيه الى كتاب الله وسنة نبيه ﷺ اذا كانت العامة ومن ليس من اهل العلم ليست هذه منزلتهم.

د عوامو دا منزله نه ده چې رد وکړي.

لانهم لا يعرفون كيفية الرد الى كتاب الله والسنة ووجوه دلائلهما على احكام الحوادث فثبت انه خطاب للعلماء.

ثابت شو چې دا خطاب علماو ته دي عوامو ته نه دي فان تنازعتم عامو ته نه دي لږ انصاف هم په کار دي هر څوک دې ګریوان کې سر ټیټ کړي چې څوک زما خبره او روي ګریوان کې دې سر ټیټ کړي چې ایا فان تنازعتم کې خطاب امي ته شوې دي نه دي شوې امي ته خطاب هغه اهل ددې نه دي دا به تکلیف د بمالا یطاق لازم شي هغه په لس شل کاله درس وایي هغې نه بعد به کیفیت درد پیژني او ددې زمانې خلک کیفیت درد هم نه پیژني که عالم هم شي څکه په آحادیثو کې تقدیم او تاخیر سنه چا ته معلومه ده د ناسخ او منسوخ بیلول څوک کولې شي رجحان په سند د حدیث او متني اضطرابات څوک دفعه کولې شي هغه محدثین هغه حفاظ هغه ماهرین ددې فن کوم دي او نن صبا چې هغه په دې ټولو ماهر وي په تقدیم تاخیر په ناسخ منسوخ د سند په تحقیق په اسماء الرجال د متن د اضطراب په رفعه باندې نو چې نه وي قادر په دې نو علماو ته هم دا خطاب نه دي په کار څکه چې دلته هم

**تکلیف بما لا یطاق** دي .

زه مُلا یمه خو کیفیت درد د مسئلې متنازع فیه چې کله غیر منصوص وي یا منصوص متعارضه وي الی کتاب الله ته سنت رسول زه نه شم کولې ترڅو پـه کې د اسلافو قول راوانخلمه د مجتهدینو قول په کې راونه خلمه نو ته دا خطاب فقهاء مجتهدینو ته دي هغه علماو ته هم نه دي چې کوم اهل ددې کار نه دي .

دا کوم څلور اعتراضات چې ما ذکر کړل دا امین الله بشاوري وهابي په خپله رساله کې کړي دي **القول السدید في مسئلة التقلید** غالباً چې دا یې نوم دي د کتاب ، د کراچي نه یو عالم کتاب پرې ولیکه **القول السدید علی القول العنید**، دا قول عنید یې د بشاوري قول را اخیستې او تکي په تکي یې بشاوري ملا کونړي ملا دا خبره کړې پښتو کې لیکل شوې ډیر بهترین کتاب دي .

په یوه صفحه یې عجیبه خبره کړې ده بشاوري ابن ابي شیبة نه نقل کړي دي څه د پاسه سل اعتراضات چې ابن ابي شیبه په خپل مصنف آخري جلد کې کړي هغه یې قطار کړي او خلکو ته دا بنایي چې ګنې زه دومره باتوریمه چې ما په امام ابو حنیفه اعتراضونه کړې دي هغې کې یو اعتراض دادی چې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې اودس چې کوم دي دا حسن ذاتي نه لري دا حسن لغیره دي که مونځ او طواف وغیره نه واي نو ده کې به څه حسن نه واي نو داد عبادات مقصودي وو نه ، نه دي حسن غیري په کې راغلي دي او حال دادی نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ فرمایي چې دا طهارت او وضوء چې کوم دي **شطر الایمان** دي نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ورته نیم ایمان ویلې دي او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ورته عبادت مقصود دي نه وایي .

یو یې دا اعتراض کړي دي نو د کراچي هغه عالم چې دې ځای ته را رسیدلي دي وایي عجبه ده دا خو مخکې ما ته پته نه وه چې اهل حدیث وهابیان وایي چې اودس نیم ایمان دي نو وایي عجیبه داده چې کله سړي فساطهٔ او ضراط واچوي اودس یې لاړ شي چې اودس یې لاړ شي نو ددوي په فتوی باندې نیم ایمان ترې نه لاړ کنه ځکه دوي وایي دا خو نیم ایمان دي نو نیم ایمان ترې نه لاړ چې اودس یې وکړو ایمان یې بیرته راغې چې بیا ترې نه فساط او ضراط لاړ شي نو نیم ایمان بیا لاړ .

بيا وايي چې د وهابيانو عجيب ايمان دي چې په يوه پوسكي سره ترې نه نيم ايمان ځي دا څه رقم ايمان دي چې شطر الايمان دي چې اودس دې مات كړو نو نيم ايمان ترې لاړو كنه ظاهر بين دي حمقاء دي شطر كل اوقاتو كې په معنى د نصف نه وي كله په معنى د حصې سره راځي او ايمان هلته په معنى د اسلام دي نو د اسلامي اركانو نه يو ركن خو دي كنه دا چې د مقاصد مقصود دي وو نه ندي او مقصود للغير دي نو يو شي چې مقصود للغير وي دين نه خو ونه وته كنه د غير له وجې نه خو حسن په كې راغې كنه.

كه دا مونځ طواف تلاوت او نور د دين چې كوم كارونه دي دا ټول نه وايي نو اودس كې په څه اهميت وه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ خبره په خپل ځاى صحيح ده خو داسې هم نه وايي چې من الدين نه دي دا خو يې چيرته نه دي ويلې دين نه خو دې خو د دين كارونه څه حسن ذاتي لري او څه حسن غير لري ده كې حسن غير دي بنائسته خبره يې كړي ده.

نو دې ځاى كې دا څلور اعتراضونه بشاوري كړي دي او جوابونه يې ما وكړل.

بشاوري دغه ځاى باندې يو بل اعتراض هم كړي:

بل دليل دا وايي چې تفسير القرطبي په تقليد باندې رد كړي دې په خپله رساله كې وايي بيا يې د هغه يو عبارت نقل كړې نو تؤمنون ببعض الكتاب وتكفرون ببعض دا د يهودو كاروي قرطبي كه ټول وكتل شي بيا تاته پته لګيږي چې هغه د تقليد في الاصول منكر دي كه د تقليد في الفروع منكر دي يو په اصولو اعتقادياتو كې تقليد دي يو په فروعو جزئياتو عملي وو كې تقليد دي دې هغه عبارت زه د دې لپاره نقلوم چې د هغه خوله بنده شي تفسير قرطبي جلد ۱۱ صفحه ۲۸۲:

مسألة: لم يختلف العلماء، علماء اختلاف نه لري.

ان العامة عليها تقليد علمائها. چې په عامو باندې تقليد د علماء لازم دي عليها كې دا على د وجوب لپاره دي.

والهم المراد، همدغه علماء مراد دي په دې قول كې چې:

﴿فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

واجمعوا على ان الاعمى لا بد له من تقليد غيره ، په دې اجماع ده چې کوم سړي قرآن او سنت کې اعمى وي عامي وي دا علماء هم عوام دي مجتهد چې نه شو هغه عامي دي نو په هغوي لا بد له من تقليد غيره .

دارنګې تفسير القرطبي جلد ۲ صفحه ۲۱۱:

الثالثة – قوم تعلق قوم بهذا الآية .

هغه ايات يادوي .

﴿ قَالُواْ بَلْ نَتَّبِعُ مَآ أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ﴾. (سورة البقرة آيت : ۱۷۰)

ددې تفسير کې وايي تعلق نيولې يو قوم په دې ايات باندې في ذم التقليد ، دې ايات نه يې دليل نيولې چې دا خو مشرکين وه چې ويل به يې چې مونږ پلارانو پسې ځو ددې نه يې دليل نيولې په ذم د تقليد کې .

لذم الله تعالى الكفار باتباعهم لابائهم في الباطل واقتدائهم بهم في الكفر والمعصية .

له وجې د ذم د خداى تعالى نه کفارو لره په اتباعو ددوي اباو لره په باطل کې او اقتداء ددې بچو تر پلارانو په کفر او معصيت کې دي جواب کوي .

وهذا في الباطل صحيح . که ته دا په تقليد باطل کې اخلي يو بچي د پلار پسې په شرک کې ځي پلار يې چرس څکي بچي پسې روان دي په حرامو معصياتو کې نو وايي بيا صحيح دي .

اما التقليد في الحق ، هر چې تقليد دي په حق کې .

فاصل من اصول الدين ، داد دين د اصولو نه يو دليل دي ځکه ادله څلور دي او دا ترې يو اصل دي .

وعصمة من عصم المسلمين . او داد مسلمانانو د ساتلو نه د ساتلو لپاره د بچاو يوه لاره ده .

يلجأ اليها الجاهل المقصر عن درك النظر .

هغه ناپوهه چې هغه کوتاه وي د درک د نظر نه نظر هغه اجتهاد او استدلال دي چې دې د اجتهاد او استدلال درجې ته نه وي رسيدلې په دغه باندې دوي اطلاق د جاهل هم کوي د غير عالم هم کوي د عامي هم کوي د متفقه هم کوي .

**واختلف العلماء في جوازه في مسائل الاصول** . هر چې اصولو کې دي اختلاف دي .

**واما جوازه في مسائل الفروع فصحيح** . فروعي مسائلو کې تقليد صحيح خبره ده چې دا جائز دي .

**الرابعة التقليد عن العلماء حقيقته قبول قول بلا حجة وعلى هذا فمن قبل قول النبي صلى الله عليه وسلم من غير نظر في معجزته يكون مقلدا .**

تاسو ته ما مخکې ابتداء کې دا ويلې وه که چا د نبي عليه السلام قول قبول کړو بدون د معجزې نه او سوچ يې په معجزاتو کې ونه کړو قبلوه يې لکه مونږ او تاسو ټولو د نبي عليه السلام قول بدون د معجزې نه قبلوو عوامو ته معجزه سندي څه معلومه وي چې دا معجزه هسې يې قول قبلوي نو دا مقلِد دي .

**واما من نظر فيها فلا يكون مقلدا** . او که چا يې په معجزه کې نظر وکړو او د معجزې د طلب نه بعد يې قول تسليم کړو نو بيا مُتبِع دي خو مقلِد نه دي دا اول استدلال وه زمونږ په خپله دعوى باندې څلور اصولو د پاره زمونږ دري اصولو ته دغه ايات جامع دي ﴿أَطِيعُواْ اللَّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ﴾ .

دري اصول شو څلورم اصل اجماع ده اجماع د پاره د سورة نساء هغه ايات دليل دي:

﴿وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ .

هغه څوک چې هغه تابعداري کوي د مؤمنانو لارې نه سوا د بلې لارې تابعداري کوي وبه يې ګرځوو کوم ته چې ده مخ ګرځولې ده منتهى کې به يې جهنم ته داخل کړو بده مرجع ده.

په دې ځای باندې تفسير الكبير تفسير القرطبي روح المعاني څومره تفاسير چې تاسو ګوري په دې ځای باندې وايي چې دا ايات دليل دي د حجيت د اجماع لپاره چې اجماع دليل دي.

## ايات نمبر ثاني :

سورة نساء ايات نمبر ۸۳ :

﴿وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ﴾ .

کله چې راشي دې منافقينو ته يو کار د امن يا د خوف خور کې دوي هغه لره .

﴿وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ﴾ .

که چيرې دوي رد کولې دغه کار إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِينَ﴾ پوه شوې به وه په حقيقت د هغې هغه کسان ﴿يَسْتَنبِطُونَهُ﴾ چې هغوي طلب د استخراج د هغې کوي .

﴿مِنْهُمْ﴾ له دوي نه دوي کې چې کوم مستنبطين دي هغه به پرې پوه شوې وه .

﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطَانَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ .

دا ايات دا ثابتوي چې په کومې مسئلې پوه نه شوي د هغې رد وکړه والرسوال لره او رد يې وکړه اولى الامر لره نو ددوي هغه اعتراض هم دفع شو چې هلته يې ويلي وه فان تنازعتم في شيء فردوه الى الله والرسول نو رد اولى الامر ته نه دي په کار دغه ايات دا ثابتوي چې رد به اولى الامر ته هم کوي او اولى الامر څوک دي ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ﴾ چې هغوي نه اهل د استنباط دي استنباط څه ته وايي طلب د نبط نبط څه ته وايي کوهي کې چې اولې اوبه راوځي هغه راويستل نو فقهاء ته مستنبطين ځکه وايي چې دغه مسائل چې منصوص نه وي قرآن کريم کې د هغې اصول پراته وي خو دومره ژور وي لکه لاندې کوهي کې اوبه چې پرتې وي .

نو هغه دوي په خپلو مشقاتو او تکاليفو د عقل په استعمال سره د هغې ځای نه راوباسي د قرآن کريم او د احاديثو مثال يې د يو کوهي او د بحر سره ورکړې هغه مسئله چې ورکه ده نص کې ښکاره نه معلوميږي د هغې تشبيه يې د نبط او اوبو سره ورکړې او دا مجتهد يې مستنبط دي هغه نبط اوبه د هغه ځای نه را اوباسي .

شيخ حسن جان صاحب به عامه خبره کوله دا به يې ويل وايي داسې احمقان دي چې هلکه دې کوهي نه اوبه ما را ويستي او ګيلاس کې مې واچولې پاکې سُتره اوبه او تاته مې

درکړي چې دا او به وځکه او ته احمق یې وایي چې نه نه زه او به خپله را او باسمه نو را او باسه
کنه ځان به پرې سترې کړي او چې څومره هم ځان سترې کړي هغه نصوصو ته به ځي او ائمه
وو چې کوم اقوال کړي په همغې اصولو به بیا مسئله را و باسي هغه چا چې تیارې را ویستلي
او په ګیلاس کې درته اچولې خوله کې درکوي د هغې ناشکري کوي او شرک یې ګڼي خپله
دې ځان پرې بیا سترې کړي دي او هسې اچار دې جوړ کړي .

یوه مسئله دې مذهب نه راپیتوه بله د بل مذهب نه پیتوه کاشکې د دې څلورو مذهبونو
اصول دې نه راخیستي او د دوي دلائل او تا چیرته ځان ته یو اصل دې لرلې بیناد دې لرلې بیا
به مونږ منلې وي چې ته هم څوک یې .

دا خو اسان کار دي کمپیوټر ته کینه امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ دا وایي بس متون الحدیث ته
دا حدیث ور واچوه د احادیثو استخراج وکړه بس دې ستا چې کومه رایه وي په خیته کې
هغې ته ترجیح ورکړه دلائل وو ایه هغه نورو سره به بیا څه کوي چې هغه متضاد نور روایات
راغلي هغه نورو ائمه وو پرې قول کړي دي او د عوامو نه دا حق پټوي هغې سره به بیا څه
کوي .

تفسیر الرازي جلد ۱۰ صفحه ۱۵۴ کې د دې ایات کریمه نه د تقلید اخذ کوي :

**ولولا ان الاستنباط حجة لما امر المكلف بذلك .**

وایي که استنباط دلیل نه وایي نو مکلف به یې نه ماموره ولې په رد د مستنبطینو
باندې .

**فثبت ان الاستنباط حجة** .نو ثابته شوه چې استنباط دلیل دي .

**والقیاس** . او قیاس د فقهاو .

**إما استنباط او داخل فیه فوجب ان یکون حجة** . نو لازمه شوه چې دلیل دې شي .

**إذا ثبت هذا فنقول الآیة دالة على أمور أحدها ان في أحكام الحوادث ما لا یعرف بالنص بل
بالاستنباط . وثانیها أن الاستنباط حجة .**

څه حادثې داسې شته دي چې هغې کې به نص صریح نه وي د هغې معلومو الي به په
استنباط او استخراج باندې کیږي دویمه دا ثابته شوه چې استنباط حجت دي څکه یې

مکلف مامور کړو په رد د هغې باندې .

دریمه دا چې :

ان العامي یجب علیه تقلید العلماء في احکام الحوادث .عامي چې دي عامي چې غیر مجتهد وي واجب ده په ده تقلید د علماو په حادثو کې .

دارنګې تفسیر اللباب لابن عادل جلد ۱ صفحه ۱۵۴۸ :

ومنها ان العامي یجب علیه تقلید العلماء في احکام الحوادث .

دارنګې تفسیر المنیر جلد ۵ صفحه ۱۷۸ :

ومنها ان العامي علیه تقلید العلماء في احکام الحوادث .

دارنګې احکام القرآن د جصاص جلد ۳ صفحه ۱۸۳ :

ومنها ان العامي علیه تقلید العلماء في احکام الحوادث .

ومنها ان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قد کان مکلفاً باستنباط الاحکام والاستدلال .

دې هم مجتهد وه نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کومه مسئله جزیه به پیښه شوه ده کې وحي کیده او څه به یې استنباط د مسئلې کولو لکه هغه بي بي چې ورته راغله زما پلار وفات شوې دې او په هغه باندې حج وه زه ترې حج وکړم وایي که ستا په پلار د چا قرض وایي نو تا ادا کولې شو وایي هاو وایي دا حق في الاداء حق الله دي دا هم ادا کړه .

نو دا قیاس د حق الله یې وکړو په حق العبد باندې په جامع مشترک د علت سره چې هغه حق حق دي هغلته صحت د اداء د غیر نه دلته صحت د اداء د غیر نه حکم را معاد شو .

## دلیل نمبر ثالث :

دا دې څوک نه وایي چې د مفسرینو اقوال مونږ نه منو ځکه چې مونږ غیر مقلدین یو او مونږ ته به نصوص پیش کوي دا مونږ تائید کې را اخلو چې دا څوک ونه وایي چې دا اُخل تاسو ځان نه کړیدي ځان نه مو نه دي کړي په تائید کې مونږ د مفسرینو اقوال پیش کړل چې دغه فقهاء د غه مفسرین ذهاب د غې مسئلې ته کوي چې کوم ما ورته کړې دي او دا ایات دال ګرځوي په استنباط او د استنباط په حجیت باندې .

دارنګې ایات نمبر دریم :

﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَافَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ (سورة التوبة آيت : ۱۲۲)

نه دي په کار مؤمنينو ته چې هغوي نفير جهاد ته په غونډه وځي ولې نه ځي په دوي کې یو طائفه چې دين کې فقه حاصله کړي بيا دوي قوم لره انذار وركړي چې كله واپس شي دا مجاهدين دوي لره بنائيږي هغوي انذار قبول کړي .

دا ايات دا واضحه کوي چې کوم په دوي کې فقهاء شي هغوي به غير ته نصيحتونه کوي او هغه غير به ددوي د نصيحت قبول کړي استدلالات نه دي چې هغه به راځي او دې فقيه سره به چيرې چارې کوي دا خبره دې کوم ځاې نه وکړه مفاتيح الغيب تفسير الرازي جلد ۱۰ صفحه ۱۵۳:

فأوجب الحذر بأنذارهم والزم المنذرين قبول قولهم .

واجب کړو خداى تعالى يرول د خلكو په انذار ددوي سره او لازم کړو خداى تعالى په منذرينو باندې قبول د قول ددوي چې دوي څه وايي هغوي به يې قبلوي دا واجب دي د فقيه قول يې واجب کړو چې هغوي به يې مني دارنګې تفسير اللباب لابن عادل جلد ۱ صفحه ۱۵۴۵:

بأن العلماء يجب على غيرهم قبول قولهم .

علماء داسې دي چې په غير ددوي نه په هغوي ددوي د قول قبلول واجب دي .

لقوله تعالى ﴿لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ (سورة التوبة آيت : ۱۲۲) فأوجب الحذر بأنذارهم والزم المنذرين .

واجب يې کړو خداى تعالى يرول د خلكو په انذار د ددوي سره او لازم کړو خداى تعالى په منذرينو باندې قبول د قول ددوي چې دوي څه وايي هغوي به يې قبلوي دا واجب دي .

دارنګې احکام القرآن د جصاص جلد ۳ صفحه ۱۸۲ :

وجائز ان يسمى الفقهاء اولى الامر . فقهاء ته اولى الامر ويل جائز شو .

لانهم یعرفون اوامر الله ونواهیه . ځکه دوي پیژني اوامر الله ونواهیه .

ویلزم غیرهم . لازم شو بغیر ددې فقهاء .

قبول قولهم . قبول د قول ددوي .

فیها . په دې مسائلو کې .

فجائز ان یسموا اولی الامر من هذا الوجه کما في ایة أخری لیتفقوا في الدین ولینذروا قومهم اذا رجعوا الیهم لعلهم یحذرون فأوجب الحذر بانذارهم والزم المنذرین قبول قولهم .

دا ایات ددې دلیل شو له څند نصوصو د مفسرینو سره چې خدای تعالی په منذرینو باندې د فقیه د قول قبلول واجب کړې دي او د فقیه قول قبول ته تقلید ویل کیږي .

## څلورم نمبر ایات :

﴿ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ (سورة النحل آیت : ۴۳)

که نه پوهیږي نو تاسو د اهل علمو نه تپوس کوي نو تپوس له اهل علمو ددې لپاره دي چې سړې پرې عمل او کړي دي د پاره تپوس کیږي .

تفسیر روح المعاني جلد ۷ صفحه ۳۸۷ :

واستدل بها ایضاً علی وجوب المراجعة للعلماء فیما لا یعلم .

استدلال شوې په دې ایات باندې علی وجوب المراجعة علماء ته په هغه مسائلو چې خپله نه پوهیږي مراجعه علماء ته واجبه شوه .

او په الاکلیل د جلال الدین السیوطي رَحِمَهُ اللَّهُ کې ذکر دي :

انه استدل بها علی جواز تقلید العام في الفروع .

استدلال شوې په دې ایات باندې چې عام خلک په فروعو کې تقلید کوي دا جائز دي دا واجب دي دې نه استدلال شوې دي .

بشاوري په خپله رساله کې د مثبتینو د تقلید استدلالاتو کې دا ایات را اخیستې دي بیا د هغې نه جواب کوي جواب یې دا کړي چې : ان کنتم لا تعلمون چې تاسو نه پوهیدې نو

وايي مقلدين نه پوهيږي تپوسونه دي کوي وايي مونږ پوهيږو زمونږ ضرورت نشته .

نو زه وايم دا دی څومره لويه دعوی وکړه فاسألوا خطاب اول مخاطب په فاسألوا کې

څوک دي صحابه نو صحابه وو کې هم داسې وه چې لا تعلمون نسبت ورته کيدو او سوال د

اهل علم پرې لازم وه .

او وهابي ټانګيوال ته نه دي لازم دا کومه دعوی ده بشاوري ته خو به ځان ته اهل ذکر

اهل علم وايي دا تاسې چې مقتديان دي دا ټول اهل علم دي هغوي بيا څه شي کوي لا

تعلمون دي که يعلمون دي که لا تعلمون وي نو فاسألوا تپوس کوي د اهل ذکر نه خو فرق دا دی

چې ته دې خلکو ته وايي چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ اهل علم نه دي زه اهل علم يم زما ومني

خو د هغه مه مني دا ټول تا پسې روان دي کنه .

وهابي چا پسې ځي خو چې ده پسې مونځ کوي ده پسې روان دي رستمي پسې چې

مونځ کوي هغه پسې روان دي دا عوام يې تقليد د خپلو علماء کوي لګيا دي کنه داسې

حماقت روان دي وايي نه نه دا اتباع ده امي سړي به ملا صاحب ته وايي چې ما ته دليل ووايه

دا څومره آزادي يې ورکړه ما ته به امي راځي دا مسئله څنګه ده زه به ورته مسئله بنايمه بيا به

امي ما ته وايي چې نه مولانا صاحب ما ته اوس دليل ووايه نو زه به بيا دليل وايمه د قرآن نه

نو دا امي بيا په دليل پوهيږي ؟.

زه به بيا د حديث نه دليل وايمه هغه بيا پرې پوهيږي حديث باندې داسې حمقاء را

غونډ دي وايي نه دا عوام به علماء نه دليل غواړي عوام به اوس عالم نه دليل غواړي که

تقليد به کوي عالم چې څه وويلي اعتماد به کوي خبره به يې مني که چون چرا به کوي ؟

چې نه ستا نه منمه زر دليل ما ته پيش کړه .

څه عالم چې دليل پيش کړو جاهل پرې پوهيږي بيا کله چې د دليل څه اهميت دي دا

څومره قوت لري دا دليل الفقيه والمتفقه يو کتاب دي دې کې يې ددغه شان دروغجنو

دعوی باطلې کړي دي اصلاً خبره دا ده چې دا اتفاقي مسلم خبره ده چې دا امت د نبي

عَلَيْهِ السَّلَامُ دري جماعت دي مقلدين دي مجتهدين دي اهل هواء دي کوم سړي چې مجتهد شي

په هغه باندې تقليد لازم نه دي دې کې اختلاف شته دي .

الفقیه والمتفقه ذکر کړي دي چې مجتهد باندې تقلید شته دي او که نشته دي نو وایي که یوه مسئله کې یو مجتهد ونبلي او ده نه دغه وخت کې تپوس وشي وایي دې دي وګوري چې له ده سره د استنباط وخت شته او که نه که چیرته د استنباط وخت ورسره وه او مستفتي وخت ورکولو چې خیر دي بل وخت جواب راکړه.

وایي ده لره مراجعه بل عالم ته نه ده په کار دَې دِي خپله استنباط وکړي او که چیرته وخت ورسره نه وه تنګي د وخت وه نو مجتهد هم کولې شي چې د وخت د تنګي له امله د یو بل مجتهد نه استفتاء وکړي.

نو اصل کې دا امت درې جماعت دي اهل هواء دي مقلدین دي مجتهدین دي او دوي سره د مباحثې په وخت کې به څو طریقې د مباحثې اختیاروي چې اخر ددې ادله وو کې به ان شاء الله راشي.

مجتهد چې وي دا غیر مقلد وي او اهل هواء چې وي دا هم غیر مقلد وي.

نو خطیب بغدادي په الفقیه والمتفقه کې وهابیان ددې زمانې چې دي دا فقهاء نه دي دوي فقهاء مجتهد ته وایي دوي مجتهدین نه دي دوي خپلو کې یو بل ته لکه وایي الباني مجتهد دي دا بعضې جهلاء وایي ذاکر نائک مجتهد دي، مجتهد خو د نسې ناولې نه وي لکه ذاکر نائک دده دې دا مردار شکل ورک شي.

اوس څه بریلوي حضراتو نه اورم چې طاهر قادري هم مجتهد دي او که وایي چې مجدد دي ددې زمانې خو خیر مجدد ورته وایه نو د وهابیانو چې کوم علماء دي دا فقهاء مجتهدین نه دي دا متفقهین دي باب د تفاعل تکلف ته یې وایړوه دوي په زوره ځان ته مجتهدین ویلي دي او اهل ددې کار نه دي.

نو خطیب بغدادي په الفقیه والمتفقه کې دا یې د کتاب نوم ایښی دي فقهاء څوک دي او متفقهین څوک دي هغه چې فقهاء نه دي مجتهدین نه دي او ځان ته فقهاء او مجتهدین وایي هغه څوک دي سره بیان یې کړي د فقیه اتباع لازم ده د متفقه اتباع نه ده لازم هغه خو خپله غریب اهل هواء وي نو خطیب بغدادي په خپل مذکور کتاب جلد ۲ صفحه ۳۵۱ کې وایي:

باب القول فيمن يسوغ له التقليد ومن لا يسوغ. چا ته تقلید جائز دي او چا ته تقلید

جائز نه دي.

اما من يسوغ له التقليد فهو العامي. هغه تقليد چې ورته جائز دي هغه عامي دي عامي دوي چا ته وايي چې غير مجتهد وي عامي نه عوام جوړ نه کړي چې څوک غير مجتهد وي په اصطلاح د مجتهدينو کې ده ته عامي ويل کيږي دوي ورته غير عالم هم وايي ګوره خپله تعريف کوي.

الذي هغه عامي لا يعرف طرق الاحكام الشرعية، د احکامو شرعيه وو د استخراج طُرق چې نه پيژني نو نه يې زه پيژنم او نه يې تاسو پيژني او نه يې د دې زماني مفتي پيژني هغه چيرته په اخذ د مسائلو پوهيږي.

فيجوز، جائز شو ده ته، ان يقلد عالماً چې دې د يو مجتهد تقليد وکړي، ويعمل

بقوله، دليل څه دي:

﴿قال الله تعالى فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾.

ګوره تقليد لپاره يې دا دليل وګرځوه.

ثم قال بيا خطيب بغدادي په فقيه والمتفقه جلد ۲ صفحه ۳۵۳ کې ليکي وايي د دې

داسې مثال دي:

كتقليد الاعمى في القبلة، چې يو سړي عامي وي طريقه د استخراج د مسائلو شرعيه وو نه پيژني او وايي چې تقليد هم نه کومه وايي داسې مثال دي لکه ړوند سړي د قبيلې په معرفت کې د چا نه مني نو خطاء کيږي به کنه نو ړوند سړي ته کله د قبلې پته لږي او که يو سړي ورته ووايي چې قبله داسې نه ده دا بل طرف ده راتاويې کړي او دې ورته وايي نه ما ته په دې دليل پيش کړه نو اوس به دلائل پرې وايي دليل به نه وايي تسليم به کوي.

دا ړوند به تقليد کوي څه معنی تسليم قول الغير بلا دليل ستر ګې پټې دي دا غير چې ورته ويلي قبله داسې ده د دې غير قول به بدون د چون چرا نه قبلوي دا ړوند او که نه يې قبلوي بيا به دا سړي ګمراه وي کوم ړوند چې د بناء خبره نه مني دا به ګمراه وي بيا دغه شان ته دا عوام د دې زماني دي که علماء دي دا عاميان دي مجتهدين بنايان دي دا رانده دي په

قرآن او سنت کې چې هر کله راند دي دغه روند به د هغه بناء لاس نیسي او چون چرانه بغیر به يې قول قبلوي او که قبول يې نه کړو یا به احمق وي يا به ګمراه وي دا سړي .

**فانه لما لم يكن معه آلة الاجتهاد في القبلة** . آله د اجتهاد في القبلة سترګي دي کنه په عقل خو دا نه معلومیږي په سترګو معلومیږي هغه آله د اجتهاد في القبلة په سترګو معلومیږي مطلب که په یو ځای کې تا نه قبله ورکه شي نو که ته لږ انتظار وکړي د لمر په سفر به هم پوهه شي چې لمر کوم خوا روان دي خپله تاته په دې علاقو کې پته لګیږي نو چې هر کله رانده سره آله د اجتهاد في القبلة نشته .

**كان عليه تقليد البصير** ، په ده باندې تقليد د بصير لازم شو په دې کې کنه دغه شان کوم عوام کوم علماء آلې د **اجتهاد في المسائل** نه لري په هغوي باندې تقليد د مجتهد لازم شو زه بار بار دا خبره کوم چې مونږ هم رانده یو او وهابیان هم رانده دي دې زمانه کې څوک هم بناء نشته ها داسې نه چې د اجتهاد دروازه بنده ده د اجتهاد دروازه خلاصه ده خو مجتهد مونږ نه دي لیدلي مجتهد نشته .

نو که چا وویلي چې مجتهد دي وخت کې ممکن دي که ممتنع دي نو وايه چې ممکن دي عنقا ممکنه ده وجود لري په خارج کې ممکن ده خو وجود په خارج مونږ نه دي پیدا کړي مهدي آخر زمان به مجتهد وي اتفاقاً د هغه تقليد به د هغې زمانې په خلکو لازم وي بيا .

عیسی عَلَيْهِ السَّلَام به مجتهد وي تقليد يې په خلکو لازم دي د هغه صحابه به د عیسی عَلَيْهِ السَّلَام کلک مقلدین وي دلائل به نه غواړي د عیسی عَلَيْهِ السَّلَام نه چې ما ته دلیل پیش کړه مهدي آخر زمان چې فیصله وکړي نو عوامو ته ددې ګنجائش نشته چې هغوي نه به ددې دلائل غواړي چې دې نه په دې څه دلیل دي هیڅ دلیل به نه وي د هغه قول به قبلوي ځکه هغه دواړه مجتهدین دي دوي کله نا کله دا عوام دوکه کوي کنه چې تاسې وايي چې غیر مقلد ګمراه دي نو عیسی عَلَيْهِ السَّلَام مقلد دي که غیر مقلد دي که مقلد وي د چا مقلد دي هغه غیر مقلد دي خو مجتهد دي ته خو نر شه د اجتهاد دعوی خو وکړه ته خو پرې شرمیږي .

دوي هغه خپلو بشاوري او رُستمي ته هم اعلاناً نه شي ویلي چې مجتهدین دې پټ پټ وايي چې کله يې راګیر کړي نو ولې څه چل کیږي چې مجتهد شي نو بنه په نره ووايه چې

مجتهد دي ويلې نه شي د شرم نه وايي بيا مو راتينګه وي په هغې .

اوس دا خبره چې عوام به قول د غير نه قبلوي او بلکې مطالبه د دليل به کوي الفقيه والمتفقه کې خطيب بغدادي وايي چې داد معتزله وو قول دي .

وحکي عن بعض المعتزلة انه قال لا يجوز للعامي العمل بقول العالم حتى يعرف علة الحکم .

معتزله وايي چې عوام په قول د مجتهد عمل نه شي کولې تر څو چې د هغه د حکم دليل بې نه وي معلوم کړي اوس دا خبره وهاييان کوي چې د مجتهد خبره بدون د معرفت د دليل نه منل نه دي په کار او خطيب بغدادي وايي چې دا قول د معتزله وو دي .

واذا سأل العالم فإنما يسأله أن يعرفه طريق الحکم . دوي داسې وايي چې کله د عالم نه تپوس وشي نو عالم به ورته هغه لاره د استخراج ښايي چې ما په دې دليل راويستلې ده .

فاذا عرفه وقف عليه وعمل به . دوي وايي چې کله يې دليل وښوده نو بيا به عمل پرې کوي سائل .

وهذا غلط . دا غلطه خبره ده .

لان لا سبيل للعامي الى الوقوف على ذلك .

عوام کله پوهيدې شي په استخراج د مسائلو باندې چې عامي دليل وغواړي او مجتهد دليل پيش کړي نو عامي د هغې په استدلال کله پوهيږي .

إلا بعد أن يتفقه سنين كثيرة . مګر وروسته له دې نه چې دې څه ډير کلونه فقه حاصله کړي .

ويخالط الفقهاء المدة الطويلة . او مخالطت د فقهاء مد طويله وکړي .

ويتحقق طرق القياس . وپيژني طرق لارې د قياس .

ويعلم ما يصححه ويفسده . او وپيژني هغه صحيح د فاسد قياس نه .

وما يجب تقديمه على غيره من الادلة . او وپيژني هغه چې واجبوي تقديم په غير د ادله

وو باندي.

وفي تكليف العامة بذلك تكليف ما لا يطيقونه.

او په تكليف د عامه وو كې دا تكليف بما لا يطاق دي.

ولا سبيل لهم اليه. او دې ته څه لاره نشته دي.

واما العالم هل يجوز ان يقلد غيره؟ مجتهد د بل تقليد كولې شي.

ينظر فيه فان كان الوقت واسعاً عليه يمكنه فيه الاجتهاد لم يجز له التقليد ولزمه طلب الحكم بالاجتهاد.

ومن الناس من قال يجوزله تقليد العالم. خو دا په هغه وخت كې چې وخت ورسره كم وي.

دا رنګې الفقيه والمتفقه د خطيب بغدادي جلد ٢ صفحه ٣٥٠ ذكر كوي:

اما الاحكام الشرعية فضربان. احكام شرعي په دوه قسمه دي:

احدهما: يعلم ضرورة من دين الرسول ﷺ كالصلواة الخمس والزكواة وصوم شهر رمضان والحج وتحريم الزنا وشرب الخمر وما اشبه ذلك فهذا لا يجوز التقليد فيه.

ځكه دا منصوصي غير متعارض دي.

لأن الناس كلهم يشتركون في ادراكه والعلم به فلا معنى للتقليد فيه.

وضرب آخر لا يعلم الا بالنظر والاستدلال كفروع العبادات والمعاملات والفروج والمناكحات وغير ذلك من الاحكام فهذا يسوغ فيه التقليد بدليل قول الله تعالى ﴿فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾.

دا مې دلته ځكه راوړل چې دې ايات نه فقهاء استدلال د تقليد كړې دي.

ولأنا لو منعنا التقليد في هذه المسائل التي هي من فروع الدين لاحتاج كل احد.

ان يتعلم ذلك. هريو به بيا محتاج شي چې دا به خپله زده كوي.

وفي ايجاب ذلك . كه په عامو خلكو دا لازم كړو چې هريو به تفقه حاصلوي .

قطع عن المعايش وهلاك الحرث والماشية .هر څه به ختم شي ټول خلک به په دې مكلف شي بيا نو په عوامو تقليد د علماء لازم دي هغه چې مجتهدين دي .

## پنځم نمبر ايات :

﴿وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ﴾ .

سابقين اولين د مهاجرو صحابوو د انصارو نه .

﴿وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم﴾ او هغه كسان چې هغوي اتباع كړې وي ددې صحابوو .

﴿بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ﴾ راضي ده باري تعالى له دوي نه دوي به د خالق نه راضي شي .

﴿وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ﴾ تيار كړي باري تعالى دوي ته جنتونه .

﴿تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾

دا استدلال په دې طريقه دي چې دوي وايي اهل حديث کے دو اصول کتاب الله اور سنت رسول او دا ايات دا ثابتوي چې ﴿وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم﴾ هغه خلک چې اتباع كړي ددې صحابوو يعنې چا چې د صحابوو اتباع كړې ده .

﴿رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ﴾ نو د صحابوو اتباع نه اتباع د كتاب الله ده او نه د سنت رسول ده دا يو امر اخر بل څيز شو مگر ثابته ده په نص قراني باندې هغه خو د فقهاو تابعداري هم ثابته ده په نص قرآني باندې اطيعوا الله واطيعوا الرسول و اولى الامر منكم ، ليكن كه ته وايي چې د قرآن او سنت نه اخوا د بل څيز منل شرک دي او تقليد دي نو دا ايات په دغه دعوى باندې رد كوي چې نه د صحابوو اتباع به هم كوي او چا چې كړې ده د هغوي لپاره وعدتين دي : رضاء الله واعد لهم جنات ، نو دا شرک نه شو .

## شپږم نمبر ايات :

﴿وَإِن جَاهَدَاكَ﴾ كه كوشش كوي دا مور او پلار ستا ددې :

﴿عَلَىٰ أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ نو اطاعت يې مه كوه مخكې ما تاسو ته ويلي وه چې اطاعت او اتباع دا دواړه ديو بل په معنى استعماليږي اوس دلته اطاعت په معنى د اتباع مستعمل دي ځكه پلار دده خو څه حاكم او والي نه دي د هغه خبره مه منه دا معنى شوه.

﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا﴾ دنيا كې بنه چلن رويش ورسره كوه.

﴿وَاتَّبِعْ﴾ اتباع كوه.

﴿سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ﴾ د لارې د هغه چا چې راجع وي ما ته.

څوک چې ما ته راجع وي د هغه د لارې اتباع كوه او دوي هم په دې باندې قائل دي چې ائمه فقهاء راجع الى الرحمن وه الى الشيطن نه وه كنه تپوس ترې وكړي ما يوه نه تپوس كړي وه د بحث خلک خو نه دي په لنډه ځان ترې خلاصوي ما ورته وويل چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ راجع الى الرحمن وه كه راجع الى الشيطن وه وايي نه هغه خو بزرگ وه مونږ خو رحمت الله عليه ورسره وايو نو ما ورته وويل چې بزرگ وه راجع الى الرحمن وه.

﴿وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ﴾ څوک چې ما ته راجع وي د هغه د لارې اتباع وكړه دې كې خو يې نوم نه دي اخيستي چې كوم دي او كوم نه دي څوک چې ما ته راجع وي د هغه د لارې اتباع كوه.

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ راجع الى الرحمن زه د هغه د لارې اتباع كوم نو شرک څنګه شو دلته خو د چا اسم ذكر نه ده چې د فلاني اتباع كوه او د فلاني مه كوه څوک چې ما ته راجع وي د هغه لار منه.

دا رنګې دغه دوه اياتونه د دوي جواب كې هم تاسو پيش كولې شي چې دوي وايي:

﴿قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا﴾.

مونږ اتباع د هغې كوو چې مونده كړي دي مونږ په هغې پلاران خپل نو اتباع د پلارېي كړي ده نو عام معروفه دوي كې داده چې څوک وايي زه د پلار په عقيده يمه او د چا پلار چې مشرک وي نو دا خبره به نه كوي دا ايات كريمه د حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ واقعه كې په ۱۲

پاره آيت ۳۸ قيديانو ته حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي :

﴿وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَآئِي﴾ ما اتباع کړي د عقيدې د پلارانو زما .

﴿إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَقَ وَيَعْقُوبَ﴾ زه د پلار د عقيدې تابع يمه ګوره پلار يې په سمه عقيده وه يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ اعلاناً وويل چې زه د پلار په عقيدې يمه .

﴿مَا كَانَ لَنَا أَن نُّشْرِكَ بِاللهِ مِن شَيْءٍ ذَٰلِكَ مِن فَضْلِ اللهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ﴾

دارنګې سورة طور ايات نمبر ۲۱ اوم نمبر دليل :

﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ﴾ هغه چې مؤمنان دي او اتباع وکړه د دغې مؤمنانو ذُرې دده په ايمان کې ګوري بچي د پلار اتباع په ايمان کې کولې شي کنه زمونږ پلاران مؤمنان وه په سمه عقيده وه مونږ فخراً ويلې شو چې مونږ د پلار په لار روان يو او د پلار په عقيده يو .

﴿أَلْحَقْنَا بِهِمْ﴾ پيوسته به کړو دغه پلارانو پسې .

﴿ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ ذُرې ددوي .

﴿وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم﴾ او کم به نه کړو مونږ له عمل د ذُرې نه .

﴿مِن شَيْءٍ﴾ څه شي .

﴿كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ﴾ يا اعمال دِ ذُرې به د پلار عملنامو سره تيح کړو ددوي عمل نه به څه کم نه کړو دا دري ايتونه دي ټولو کې اتباع د کشر د مشر راغلي ده خو په سمه عقيده کې په احسان کې په ايمان کې نو دا څه جرم نه دي چې يو سړي وايي چې زه د مشر تابع يمه زه د مشر په لار روان يمه هغه وخت کې چې دده مشر په سمه عقيده وي او که چيرته سمه نه وي نو هغه ايات مخاطب شو .

﴿وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا﴾ .

د شرک په عقيده کې بيا اطاعت د هغوي مه کوه يا هغه مشرکين چې پلارانو پسې په شرک کې روان وه نو هغه اياتونه پرې چسپانيږي بيا .

دارنګې سورة الملک ایات نمبر ۱۰ دلیل نمبر اتم:

﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾.

وایي به دا اشقیاء بدبخته په جهنم کې که چیري مونږ اوریدې اقوال د غیر تقلیداً او یا مو عقل کار کولې اجتهاداً نه به وو مونږ اهل د سعیر دا جهنمیان به بیا دا خبره کوي په دې ځای باندې شاه عبد العزیز رَحِمَهُ اللّٰهُ په تفسیر عزیزي صفحه ۱۳ کې دا ذکر کوي چې مراد له سمعې نه سمع د اقوال الفقهاء ده تقلیداً، او مراد له عقل نه اجتهاد دي عقلاً.

دارنګې اشرف علي تهانوي په النجات صفحه ۸ کې دغه معنی کړې ده چې مراد له سمعې نه سمع د اقوالو د علماء ده او مراد له عقل نه اجتهاد دي.

دارنګې تفسیر حقاني په صفحه ۱۴۹ کې هم دغه معنی ذکر کړې ده.

کتاب العلم لزهیر بن حرب د ابي خیثمه په جلد ۱ صفحه ۱۲ کې د امام مجاهد رَحِمَهُ اللّٰهُ قول په ﴿وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا﴾ کې پیش کوي وګرځوي مونږ متقینو ته امام معنی دا کوي:

**نأتم بهم ونقتدي بهم**. چې مونږ د متقیانو پسې اقتداء کوو.

**حتی یقتدي بنا من بعدنا**. چې وروستي بیا مونږ پسې اقتداء وکړي نو داد نیکانو دُعاء ده.

**واجعلنا للمتقین اماماً**، نو د امام معنی مقتداء دي چې دا روستي خلک ما پسې راشي نو دا دعاء د طلب د اجتهاد ده یا الله ما نه مجتهد جوړ کړه او داسې فقیه را نه جوړ کړه چې روستني خلک زما مقتدیان جوړ شي نو که چیرته غیر د الله او د رسول نه د چا پسې تلل شرک او جرم وای نو خدای تعالی به د اهل جنت او د سعداء په دعاګانو کې دا دعاء نه ذکر کوله کنه چې **وجعلنا للمتقین اماماً** او د دې لپاره ده چې دا دعا کوه چې خدای تعالی دي دغه مقام د اجتهاد ته ورسوي که چیرته قبوله شي او امت بیا تا پسې بیا اقتداء شروع کړي.

دا مبحث اول وه دا استدلالات وه **من القرآن العظیم** چې بعضو زمونږ په دعوی صراحت لرلو او بعضو کې صرف د دوي د هغې دعوی بطلان وه چې اہل حدیث کے دو اصول کتاب الله اور سنت رسول لکه **والذین اتبعوهم باحسان**، نو دا د صحابوو اتباع د دوي اصل باطلوي

چي دوي وايي الله او د رسول نه غير د بل چا اتباع نه ده په کار قرآن عظيم الشان د صحابوو اتباع ته اشاره کوي وايي چې څوک د هغوي متبع وي نو يو ورته جنت تيار دي بل به ورته د الله رضا حاصله شي .

## المبحث الثاني : استدلالات من الاحاديث :

چې هر ځای کې د صحابه وو د اتباع امر شوې وي دا د دوي د اصل بطلان خپله کوي ځکه دوي د دوه اصولو قائل دي د صحابوو د اتباع قائل نه دي او دوي بار بار په رسائلو کې ليکي چې : **هذا موقوف لا حجة في الموقوفات** ، د صحابوو په اقوالو کې هيڅ حجت نشته دي هيڅ دليل نه دي اتباع يې نه ده په کار .

نو چې کوم ځای کې په احاديثو مرفوعوو کې د صحابوو د اتباع تلقين کيږي دا بيخ کندي د وهابيانو د مذهب کوي زه بيا خپله وروسته دې خبرې ته راځم چې دا مذاهب اربعه ولې شول او دا خو د علماو تقليدات په کار دي د سفيان ثوري هم په کار دي د عبد الله بن مبارک هم په کار دي د حسن بصري هم په کار دي د ابن عُيينه هم په کار دي د ابن عباس د ابن مسعود هم په کار دي د ابن عمر هم په کار دي نو دا څلور ولې شول دغې کې خبره ده ګنې دا مسلم حقيقت دي چې هر څو مره ځان خلاص کړي نو تقليد العلماء ته به راځي د فقهاو خبرې په مني خو خبره دې ځای کې پيچيده ده چې دا اربعه فقهاء ولې شو .

دا خبره د دوي سر کرده ابن تيميه خپله فتاوى کې جواب کړې ده د هغې نه استدلال دې کې شوې دي چې تاسو حنبلي فقه مني د صحابوو اتباع ولې نه کوي چې تاسو حنبلي فقه پسې ځي ځکه هغه حنبلي وه نو هغه ورته جواب کړي چې دې تولو صحابوو کې د هر صحابي که د يو صحابي فقه مُدَوّنه دي ماته وښوده نو مونږ به امامان پريږدو او صحابي پسې به لاړ شو د صحابوو فقه کې تدوين و نه شو شاګردانو يې کما حقه خدمت و نه کړو د هغوي فقه مدونه نه شوه راغونډه نه شوه په ګتبو کې .

مثلاً يو کس وايي چې زه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ پريږدم او د صديق اکبر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ پسې ځم نو د صديق اکبر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ اقوال او دا سه کې څوک پيدا کولې شي په مانځه کې تول اقوال پيدا کولې شي په حج صوم په زکواة نکاح او عتاق کې بيع شراء اجاره شفعه په دې تولو کې د صديق اکبر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ اقوال څوک پيدا کولې شي .

نو صرف خوله خو نه ده چې وايي زه د صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنهُ مقلد يمه او د هغه په مذهب يمه نو اوس مذهب يې چيرته پيدا کوي فقه يې مُدَوَّنه نه شوه د غه شان عمر فاروق دغه شان ابن عباس دغه شان ابن مسعود ددوي د فقه تدوين نه دي شوي چاپ شوې نه ده ليکل شوې نه ده او چا جمع کړې نه ده اقوال يې يو څه ناڅه پيدا کيږي پراګنده په ټولو ديني کتابونو کې دا به ته څنګه پيدا کوي .

بس کمپيوټر ته به ناست وي قال ابوبکر به ليکي ورکوي به يې په کې نور به يې لټوي هغلته به نور ډيرې داسې مسئلې راشي چې ستا د رايه به خلاف وي بيا به يې ته هم نه شې منلې حيران به يې او ستا قول هم داده چې زه خو د هيچا قول بې دليله نه قبلوم بيا به صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه دلائل هم په کې غواړي کنه ځکه ته خو متبع يې چې اوس ما ته په دې دليل هم راکړه دا تا خبره کوم ځای نه کړي ده .

اوس د هغه تدوين د مذهب نشته دي چې د هغه نه وروسته فقهاء وي يا د هغه شاګردان وي چې د هغه په قول چا اعتراض کړې وي او ز ريې جواب ورته ويلې وي .

ائمه خو داسې نه دي د ائمو اقوال چې دې د اربعوو را غونډ شوې دي تدوين شوې دي مدونه فقه ترې جوړه ده مثلاً که ته فقه حنفي ګوري نو په هره مکتبه کې د فقه حنفي لوي لوي کتابونه پيدا کولې شي که د اوداسه په مسئله کې يو څوک نبلي نو چې فقه حنفي خلاصه کړي تا ته په کې اقوال پيدا کيږي دغه شان هره مسئله کې چې څه مشکل څوک لري نو فقه حنفي کې د هغه مشکل حل پيدا کولې شي .

دغه شان فقه شافعي فقه حنبلي فقه مالکي دا خروج د مذهب چې کوم علماء جائز نه ګڼي د هغې دا معنی نه ده چې ګڼې يو عالم تللې نه شي ولې امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ زمونږ مذهب ته رانغي نو څنګه بل نه مونږ ته راتلي شي مونږ نه بل ته نه شي تلي دا مطلب نه دي د هغوي لويه وجه داده چې کوم علماء منع کوي دلته شافعي مدرسه نشته د شوافعو فتوی نشته د هغوي کتب نشته که يو سړي ته اوس زه وايم چې څه لاړ شه او هغه ويلي چې زه لاړم شافعي مذهبي شومه نو د وړې مسئلې پوښتنه درنه کومه بيا په ټول پاکستان کې شافعي مذهبې عالم نه پيدا کيږي چې ته په کې او نښتلې کتابونه يې نه پيدا کيږي مدرسه يې نه پيدا کيږي نو څه به کوي .

لەدغې وجې نەعلماء وایي چې بل مذهب تەتلل نەدي پەکار کەترې بهر شوي گمراه
بەشي لاربەدرنەورکەوي بیا بەنەشي پیدا کولې چې زەدادین کوم ځای نەپیدا کړم.

نو د اربعەائمو و د فقەتدوین وشو بیا د تدوین نەبعد پەدې هرمذهب کې پەزرگونو
زرگونو محدثین راغلل حفاظ د احادیثو راغلل د خپل امام خبرەیې د حدیثو سرەوتللە کەتە
د امام صاحب هرەمسئلەگوري د کتبو د حدیثو شرحې گورەفقەگورەتەبەد خپل امام د قول
دلائل پیدا کړي چې امام صاحب دا خبرەدې دلیل نەکړي اگر کەامام صاحب بەدلیل هغە
وخت سرەنەوي ویلې هغەد متن پەشکل یوەمسئلەبیان کړي دەجزیەیې بیان کړي دە.

خو چونکې دلتەفقەحنفي کې پەزرگونو محدثین دي راغلل ددەد اقوالو خدمت یې
وکړو هغەیې پەاحادیثو ثابت کړل نو اول خو تەبې چون چرا تقلید کوەاو کەنەډیرزیات
وهابیانو شکي کړي نو کەتەد خپل امام پەیو قول کې دلیل وغواړي نو کولې شي چې تەد
فقەیو کتاب تەمراجعەوکړي د خپل امام پەقول دلائل هم پیدا کړي دغەمسئلەد صحابەوو
او د نورو فقهاو پەعباراتو نەپیداکیږي نەد ابن عُیینەنەد ثوري او نەد نورو ځکەد هغوي د
فقەتدوین نەدې شوي ابن تیمیەپەخپلەفتوی کې دا جواب ورکړي زەبیا وروستو حوالە
ذکر کوم.

او ډیر معقول جواب یې ورکړي چې نن د بل فقیەتدوین نشتە.

مبحث ثاني استدلالات د احادیثو نەخو ما پەابتداء کې دا خبرەذکر کړەچې دې کې
بعضې بەداسې دلائل وي چې فقط د صحابوو د یو صحابي تائید اقتداء او تقلید بەثابتوي
دې ستاسو بەدا ذهن تەراځي چې دا خو امام صاحب نەیادوي پەهغې کې بەزەد وهابیانو د
اصل بطلان کومەچې اهل حدیث کے دو اصول کتاب او رسنت رسول دغەباطلەخبرەدەد
سنت رسول نەاخوا د صحابوو اقوال منل دا هم ضروري خبرەدە.

اول مسند احمد ابن حنبل جلد ۵ صفحە ۳۹۹ رقم د حدیث : ۲۳۴۳۴:

حدثنا عبدالله حدثني ابي حدثنا محمد بن عبيد حدثنا سالم المرادي عن عمرو بن هرم
الازدي عن ابي عبدالله وربعي بن حراش عن حذيفة رضي الله عنه قال بينا نحن عند رسول الله
صلى الله عليه وسلم . مونږ د رحمت عالم صلى الله عليه وسلم سرەموجود وو :

قال: وي فرمایل: اني لست ادري ما قدر بقائي فيكم. ما ته پته نشته چې بقاء به مې تاسو کې څو مره وي خو دا نصیحت واوري:

فاقتدوا باللذين من بعدي. اقتداء وکړي هغه کسانو پسې چې ما نه بعد دي.

يشير الى أبي بكر وعمر رضي الله عنهما، اشاره يې وکړه حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما ته چې دوي پسې اقتداء وکړي.

واهدوا هدي عمار. د عمار بن یاسر رضي الله عنه د لارې اقتداء وکړي.

وعهد بن ام عبد رضي الله عنه. او د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنهما چې کوم دین دي کومې معاهدې دي او کومې خبرې دي د هغې اتباع وکړي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په خپلو نصیحتونو کې په عمده صحابوو کې چې کوم مرجع ګرځیدله هغه وښودل چې عمار بن یاسر دي.

عبد الله بن مسعود دي صدیق اکبر او عمر فاروق رضي الله عنه دې دوي پسې لاړ شي نو ددوي دا اصل چې اہل حدیث کے دو اصول کتاب اللہ اور سنت رسول یعنې یو اځې قرآن او سنت به مني د بل به نه مني محمد مصطفی صلى الله عليه وسلم صحابوو ته ولې داسې نه وایي چې زه درنه لاړمه قرآن او سنت شته وریسې ځئ نا هغه وایي اقتداء د خلفاو پسې وکړي اقتداء د عمار وکړي اقتداء د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وکړي.

دویم مستدرک للحاکم جلد ۳ صفحه ۳۱۹: عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته رحمت عالم وفرمائل: تلاوت راته وکړه هغه ورته فرمایي تاسو باندې نازل دي او تلاوت به زه کوم وایي زه یې چې بل نه اورم ما ته خوند راکوي تلاوت وکړه هغه سورة نساء شروع کړه یو خو د بل نه سماع کې تفکر بنه کیږئ د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم دا مقصد دي بل خوا خپل امت ته ددې جواز ورکوي چې سماع د قران له غیر نه جائزه ده هغه مقصد شو په کې بل لوي مقصد د غه مقام کې د عبد الله ابن مسعود د قرأت لهجه وه او حفظ وه استاد شاګرد نه څه اوري کنه داسې یې اوس ترې اوري چې دده څه یاد دي که ندي یاد نو شروع شو هغه سورة نساء شروع کړه څه تلاوت نه وروسته چې دې آیت ته ورسیده:

﴿ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ﴾ فاستعبر رسول الله صلى الله عليه وسلم وكف عبد الله.

د نبي عليه السلام د ستر گو مبارکو نه يې اوښکې روانې وي دا يې عاجزي وه چې کله د رحمت عالم ژړا و دريده قلار شوه نو د هغه نه بعد :

**فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم تكلم** . لږې خبرې وکړه تقرير وکړه .

عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته وايې تقرير وکړه راته او س د نبي عليه السلام په وړاندې عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه قراءة خويې وکړو او س يې خبرو ته اودروي چې دده لهجه علمي څنګه ده چې دې څنګه پاخيده :

**تكلم فحمد الله في اول كلامه** . اول يې الحمد لله وويله .

**واثنى على الله وصلى على النبي صلى الله عليه وسلم** . بيا يې درود شريف وويلې .

**وشهد شهادة الحق** . داد شهادتينو کلمه يې ويلي .

**وقال رضينا بالله ربا وبالاسلام دينا ورضيت لكم ما رضى الله ورسوله** . په هغه راضي يمه چې الله او د الله رسول پرې راضي وي .

**فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم** ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

**رضيت لكم ما رضي لكم ابن ام عبد** . زه بيا تاسو ته په هغه راضي يمه کوم چې عبد الله ابن مسعود پرې راضي وي تائيد د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وشو .

عبد الله ابن مسعود د عراق کوفي ته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وليږه او بيا يې ورسره خط وليږه او هغه امام د مسجد کوفي يې مامور کړو په دې باندې چې د جمعې په ورځ دا اعلان وکړه چې عمر فاروق رضي الله عنه دا راليږلي دي چې ما په خپل ځان باندې تاسو قدر منده کړي په عبد الله ابن مسعود يعنې په کار داوه چې دا ما ځان سره حصار کړې وای خو ځان نه مې هم ستاسو قدر وکړو چې د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه غوندې انسان مې درکړو درته .

همغه چې هلته دده شاګردان شول بيا او دده د شاګردانو شاګردان امام ابو حنيفه رحمه الله دا فقهاء راغلل نو فقه د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه په عراق کې مشهوره شوه رفع اليدين هغه نه کول بس د احنافو چې څومره فقهاء په عراق کې وه هغوي هم رفع اليدين نه کول .

دريم صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۱۱۴ بيروت چاپ :

عن واصل عن أبي وائل قال جلست إلى شيبة في هذا المسجد قال جلس الي عمر في مجلسك هذا .

حضرت شیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوي ته وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته دغه ځای کې ناست وه .

**فقال لقد هممت ان لا ادع فيها صفراء ولا بيضاء الا قسمتها بين المسلمين .**

بیت الله شریف کې چې کوم ځای کې حطیم دي په دې ځای کې خزانه ده په صحیح احادیثو کې دا ثابته ده خو دا به بیا مهدي آخر زمان او عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه وخت کې بیا را اوباسي چې کله دې ته ډیر ضرورت بیا پیدا شي نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وه راویستلې صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وه راویستلې عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چا ته وویل چې تا ته هغه ځای معلوم دي دا کعبه خو مشرکینو د قریشو جوړه کړې وه نو دې کې یو سپین ږیري حیات وه الشیبة دا شیبه د عتبه ورور نه دي دا صحابي ده نو ده ته یې وویل چې تا ته هغه ځای معلوم دي هغه راغې د حطیم غاړه یې ورته وښوده چې له دغه ځای نه تر دغه ځای پورې خزانه ده نو عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل :

**هممت** . قصد مې کړي ، **ان لا ادع فيها صفراء ولا بيضاء** چې دې حطیم سره کومه خزانه ده سره زرد ی که سپین پرېږنه دم .

**الا قسمتها بين المسلمين قلت ما انت بفاعل** . حضرت شيبة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما ورته وویل ته دې کارکونکې نه یې دا کار نه دي کړي دوه صاحبینو ستا .

**قال هما المرءان يقتدي بهما** . وایي هغه خو داسې کسان وه چې د هغوي اقتداء په کار ده نو د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دادی چې یوائې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقتداء نه بلکې د صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم اقتداء په کار ده دا ددوي اصل نړه وي چې دوي وایي اہل حدیث کے دو اصول کتاب اللہ اور سنت رسول .

دا رنګې صحیح ابن حبان جلد ۱ صفحه ۱۷۹ نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تقریر کوي :

**أوصيكم بتقوى الله** . وصیت درته کوم په تقوی باندې وصیت درته کوم . **السمع** په سمع

باندې ، والطاعة ، په طاعت باندې د طاعت اطلاق په اتباع او تقلید باندې جائز دي چې کله د سمعې په مقابله کې راشي نو سمع سمع د اقوال الفقهاء ده او طاعت طاعت د امراء دي بيا ځکه دا يو ځای راغلل دا : اوصيكم بتقوى الله والسمع والطاعة . سمع د اقوالو د فقهاء کوي او اطاعت د امراء کوي وان عبداً حبشياً مُجدّعاً . اګر که يو بونجي حبشي غلام درباندې امير وي يعنې هغه چې تاسو ته سپک ښکاري نو هم اتباع يې کوي.

فانه من يعش منكم . څوک چې تاسو کې ژوندي ولري .

فسيرى اختلافاً كثيراً . ډير اختلاف به وګوري .

فعليكم بسنتي . په تاسو زما سنت لازم دي .

وسنة الخلفاء الراشدين المهديين . په تاسو د خلفاء راشدينو مهديينو سنت لازم دي.

فتمسكوا بها . منګولې ولږوي په دې سنت د خلفاء باندې .

وعضوا عليها بالنواجذ . او د ژامې د غاښونو پرې چک ولږوي يعنې کلک يې ونيسي.

وإياكم و محدثات الأمور . ځان وساتي د محدث د امورو نه .

فإن كل محدثة بدعة و كل بدعة ضلالة . هر محدث بدعت دي او هر بدعت ضلالت دي دا محدث عقيدوي ته اشاره ده چې د عقيدې په بدعت کې حسن بالکل نشته دي د اهلسنت په خلاف جديده عقيده بالکل حسن نه لري نو دې ځای کې ددې تلقين دي چې سنت د خلفاء راشدينو باندې داسې تمسک وکړي د ژامې غاښ پرې ولږوي .

او په خلفاء راشدينو کې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه داخل دي عثمان ذي النورين داخل دي د حضرت عثمان د سنن نه دا دويم اذان د جمعې چې کوم زائد شوې دي دا اذن د هغه په وخت کې وشو صحابوو پرې انکار ونه کړو بإجماع الصحابة من سنة خلفاء الراشدين شو نو دا کلک نيول په کار دي وهابيان ورته عثماني بدعت وايي او شل رکعات تراويح باجماعته په مساجدو کې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د ابي ابن کعب په امامت سره د غه وخت کې رائج شوې دا د سنت د خلفاء نه وه .

ثلاثة تطليقات په محل واحد کې مغلظ گرځول داد عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کې باجماع الصحابة ثابت شو چا هم تري نه انکار نه کولو د متعې حرمت دا په زمانه د عمر فاروق رضي الله عنه کې چې دا حراماً ده په اجماع سره ثابت شو د شيعه ګانو قول ته په کې اعتبار نشته دي داد خلفاو مخالفت دي.

دغه شان ډير مسائل دي خو ددوي اصل نړه وي چې دوي وايي اهل حديث کے دو اصول کتاب الله اور سنت رسول، د سنت رسول سره سنت خلفاء الراشدين هم ومنه دا هم د منلو دي.

دارنګې معجم الکبير د طبراني جلد ۱ صفحه ۱۴۰:

حدثنا معاذ بن المثنى حدثنا مسدد حدثنا يحيى بن سعيد عن موسى الجهيني حدثنا مصعب بن سعد قال كان ابي اذا صلى في المسجد.

مصعب رضي الله عنه فرمايي زما پلار سعد ابن ابي وقاص مسجد کې به يې چې مونځ کوه.

تَجَوَّزَ. اختصار به يې کوه.

واتم الركوع والسجود واذا صلى في البيت اطال الركوع والسجود والصلاة قلت.

حضرت مصعب رضي الله عنه وايي ما مې خپل پلار ته وويل:

يا ابتاه اذا صليت في المسجد جوزت. ډير اختصار کوي مسجد کې.

واذا خلوت في البيت اطلت. کله چې ځان ته مونځ کوي اوږد يې کوي.

قال يا بني اننا ائمة يقتدى بنا. مونږ امامان يو مونږ پسې اقتداء کيږي.

نو دا دليل دې دي چې دې زمانه کې صحابوو پسې اقتداء کيده اقتداء د قول او سنت د هر چا کار نه وو بلکې صحابي چې کوم ځای ته تللې دي خلک به د هغه مقتديان وه بيا په اقوالو افعالو په طرز او طريق کې که هغوي څه کار کړي خلکو منلي که هغوي فتوى ورکړي خلکو منلي ده نو د هغه علاقې خلک د حضرت سعد رضي الله عنه مقتديان او مقلدين وه.

دارنګې الموطأ د امام مالک رضي الله عنه جلد ۱ صفحه ۳۷۶:

وحدثني عن مالك عن نافع انه سمع اسلم مولى عمر بن الخطاب يحدث عبد الله بن عمر ان

عمر بن الخطاب رأى. حضرت عمر رضي الله عنه ولیده.

علی طلحة بن عبيدالله ثوباً مصبوغاً وهو محرم. په حضرت طلحة رضي الله عنه باندې جامه مصبوغه په احرام کې رنګ ورباندې وه.

فقال عمر ما هذا الثوب المصبوغ يا طلحة فقال طلحة يا امير المؤمنين انما هو مدر.

يو قسم خاوره وه په هغې بهٔ يې صفا يې کوله هغې څه رنګ پریښې وه.

فقال عمر انكم ايها الرهط ائمة. تاسو خو امامان يې.

يقتدي بكم الناس. خلک درپسې اقتداء کوي.

فلو ان رجلاً جاهلاً رأى هذا الثوب. که چیرته جاهل سړي وګوري.

لقال. وايي به.

ان طلحة بن عبيدالله كان يلبس الثياب المصبغة في الاحرام. په تحقیق سره طلحة بن عبيدالله به اغوستله جامه رنګینه په احرام کې.

فلا تلبسوا ايها الرهط شيئاً من هذه الثياب المصبغة.

دا دا ثابتوي چې په دغه زمانه کې چې کوم معروف صحابه وو چې هر کلي ته تللي خلکو پسې اقتداء کړې ده او خلکو يې تقليد کړي دي او معمولي دذه په جامو چې په داسې خاوره يې وينځلي وه چې هغې رنګ لرلو عمر فاروق رضي الله عنه ترې منعه کړو چې خلک دې کې تا پسې اقتداء ونه کړي.

دا رنګې معجم الكبير د طبراني جلد ۷ صفحه ۴۷۹:

حدثنا علي بن عبدالعزيز حدثنا ابونعيم حدثنا سُفيان عن ابي اسحاق عن حارثة بن مضرب قال كتب عمر الى اهل الكوفة.

حارثه بن مغرب رضي الله عنه وايي عمر فاروق رضي الله عنه کوفې ته خط وليکه:

اني قد بعثت عماراً اميراً. ما درليږلي عمار بن ياسر امير.

وعبدالله بن مسعود معلماً و وزيراً. او عبد الله بن مسعود رضي الله عنهما معلم او وزير دي.

وهما من النجباء . دا دواړه د خواصو نه دي .

من أصحاب محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من اهل بدر و أُحُدٍ فاقتدوا بهما . دې دواړو پسې اقتداء وکړي .

واسمعوا من قولهما . څه چې وايي اوري يې .

وقد اثرتكم بعبدالله على نفسي . تاسو مې غوره کړي په عبد الله بن مسعو د په نفس خپل باندې يعنې دا مې ځان ته پريښنو دل په کار وه خو په خپل ځان مې تاسو غوره کړي په عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا مې تاسو ته درکړو .

اوس ګوره دې هغوي ته خط ليکي چې :

فاقتدوا بهما واسمعوا من قولهما . دا خو زمانه د شهرت الحديث وه اوس خو کتابونه ليکل شوې قوي ضعيف شوې ضعيف قوي شوې اوس خو د صحيح حديث په کې پته نه لږيږي چې د چا څنګه خوښه وه هغه يې قوي کړي دي او چې خوښه يې نه وه هغه يې ضعيف کړې دي دومره تعصب چې په فن د حديث او اسماء الرجال کې شوي په يو کار کې هم نه دې شوي دا خو هسې د عوامو فکر دي او د هغه طالبانو چې د اسماء الرجال نه خبر نه دي باقي چې حنفي ناست دي هغې رواياتو ته يې تاويلات کتلي چې شافعي ناست دي دې ته يې کتلي دي او که اهل ظواهر ناست دي دا نوريې نه دي منلي او که دوي ناست دي هغوي يې نه دي منلي .

څه د پاسه ۱۴۰۰ کاله بعد د حديثو صحت او سقم دا بيخي د چا وس کې نه دي زمانه د صحابه وو کې خو دا مشکل نه وه کنه هغوي خو بذات خود د يو صحابي نه حديث اوريدو د صحابي نه چې يې حديث واوريده سندي مسئله خو بيخي نه وه د قوت او ضعف خبره خو بيخي وه نه په کې نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ولې داسې ورته نه ليکي چې دا دوه مې در وليږل قرآن هم دوي نه واوري او احاديث هم دوي نه واوري او هغې پسې لاړ شي چې دوي وننه مني .

فاقتدوا بهما . دوي پسې اقتداء وکړي نو د عراق خلک د عمار بن ياسر او د عبد الله ابن مسعود مقلدين وګرځيدل په دغه وخت کې همدغه وجه ده چې د عراق په خلکو کې د عبد الله ابن مسعود مذهب رائج شو خو چونکې عمار رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ امير وه او عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

معلم وه نو دده خبرې ته ترجیح وه دې د اهل فقه نه وه دا ددوي هغه پورو پاګندا او حسد هم باطلوي چې عوامو ته یې دا اچولي چې د صحابوو زمانه کې تقلید نه وه.

دا د ریمې سنې نه بعد شروع شو ولې نه وه کنه ته وایي چې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ تقلید نه وه نو هغه نه وه نو د هغه تقلید څه کول دا خو حماقت او جهالت دي چې د صحابوو زمانه کې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ تقلید راته وبنایه دا خو هسې جهالت دي ضد او عناد دي د صحابه وو تقلید وه کنه.

حضرت معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یمن کې وه د هغه تقلید روان وه عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په عراق کې وه د هغه تقلید روان وه هر صحابي چې هر ځای ته تلې هغه ځای کې خلکو تقلید کړي چون چرا یې نه ده کړي او نه یې ترې دلائل غوښتي دي چې عبد الله ابن مسعود خبر دي نه منم ما ته حدیث پیش کوه لکه وهابیانو چې کومه آزادي خلکو ته ورکړه.

سنن نسائي جلد ۸ صفحه ۲۳۰ بیروت چاپ:

اخبرنا محمد بن العلاء قال حدثنا ابومعاویة عن الاعمش عن عمارة هو ابن عمیر عن عبدالرحمن بن یزید قال اکثروا علی عبدالله ذات یوم.

یوه ورځ عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې خلک زیات شول په استفتاء کې.

فقال عبدالله: إنه قد أتی علینا زمان. عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په مونږ داسې زمانه هم تیره شوې.

ولسنا نقضي ولسنا هنالك. مونږ به قضاء ته نه کیناستو مونږ به اهل ددې نه وو.

ثم ان الله عزوجل قدر علینا. خدای تعالی هغه وخت په مونږ راوسته.

ان بلغنا ما ترون. وي رسولو مونږ هغې مقام ته چې تاسو یې ګوري چې قاضیان یې کړو اوس نصیحت کوي.

فمن عرض له منکم قضاء بعد الیوم. نن ورځ نه بعد چې چا ته فیصله راغله.

فلیقض بما في کتاب الله. په هغې دې فیصله وکړي چې کتاب الله کړي.

فان جاء امر لیس في کتاب الله. که راشي یو کار چې نه وي په کتاب الله کې.

فليقض بما قضى به نبيه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فيصله دې وکړي هغه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پرې فيصله کړې وي .

فان جاء امر . که راشي يو کار .

ليس في كتاب الله . چې نه وي په کتاب الله کې .

ولا قضى به نبيه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . نه پرې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فيصله کړې وي .

وهابيان څه وايي چې داسې مسئله نشته چې کتاب الله او سنت رسول کې نه وي بار بار دا خبره کوي :

فليقض بما قضى به الصالحون . فيصله دې وکړي هغه چې فيصله پرې صالحينو کړې وي قضى به الصالحون اجماع شوه .

فان جاء امر ليس في كتاب الله ولا قضى به نبيه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولا قضى به الصالحون . که چيرته راغې يو کار چې نه په کتاب الله کې او نه پرې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فيصله کړې وي او اجماع هم په کې نه وي .

فليجتهد رأيه . اجتهاد بالرأيه دې وکړي چې څوک مجتهد وي اجتهاد بالرأيه دې وکړي .

ولا يقول . نه دې وايي .

اني اخاف واني اخاف . زه يريږمه .

فان الحلال بين والحرام بين وبين ذلك امور مشتبهات فدع ما يريبك الى ما لا يريبك . حلال هم ښکاره دي او حرام هم ښکاره دي په مينځ د دې کې امور مشتبهات دي شکي پريږده او بې شکه ته څه فيصله په هغې کوه .

اجتهاد بالرأيه د قضي د صالحينو نه چې اجماع ده حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نصيحت کې خلکو ته ښايي چې بيا اجتهاد کوي خو چې اهل د اجتهاد وي نو اجتهاد د دې لپاره کيږي چې خلک پرې عمل وکړي فيصله درته راغله قرآن کريم کې وګوره د څه د پاره چې هغه سړي ته آسانه شي عمل پرې وکړي پيدا دي نه کړه هلته يا نه وه سنت رسول کې

وګوره دې د پاره چې عمل پرې وکړي پيدا دي نه کړه اجماع ته لاړ شه د صالحينو عمل پيش کړه پيدا دي نه کړه نو اجتهاد وکړه د څه د پاره چې هغه خلک يې واوري او عمل پرې وکړي اجتهاد پسې تلل او عمل کول همدغې ته تقليد ويلې شي .

دارنګې فقيه والمتفقه جلد ۲ صفحه ۱۸۹ امام شعبي وايي :

کتب عمر الى شريح . عمر فاروق رضي الله عنه شريح قاضي لره .

دا شريح ډير بهترين انسان وه د عمر فاروق رضي الله عنه په وخت کې د قضاء په مقام پاتې شوي صحابه به موجود وه ده به فيصلې کولې فقاهت يې دومره مُسلم وه چې صحابه موجود دي او فيصله شريح کوي د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه کې په کوفه کې په خلافت اسلامي کې .

قاضي دې وه يو خو ديو ولايت او صوبې قاضي وي د حضرت علي رضي الله عنه په وخت کې دا خلافت د مدينې منورې نه کوفې ته نقل شو دار الخلافة کوفه وګرځيده دې مبارک په کوفه کې په شهادت رسيدلي دي او شريح دده په زمانه کې په کوفه کې قاضي وه د حضرت علي رضي الله عنه په موجودګې کې به ده فيصلې کولې نو حضرت عمر رضي الله عنه دې شريح ته خط ليکي ورته وايي :

اذا حضرك امر لا بد منه فانظر في كتاب الله . مسئله درته راغله نو هغه خامخا ګوره په کتاب الله کې .

فاقض به . فيصله پرې کوه .

فان لم يكن . که نه وه په کتاب الله کې .

فبما قضى به الرسول صلى الله عليه وسلم . هغې ته ځه .

فان لم يكن . که کتاب الله او سنت رسول کې نه وه دا عمر فاروق دې د دين نه بنه خبر دې ده ته معلومه وه چې بعضې مسائل به قرآن او سنت کې نه وي بيا او وهابيان له دې نه اعلم شول او س يې خلکو ته ويلي دا سې مسئله نشته چې قرآن او سنت کې نه وي که نه وه په قرآن او سنت کې .

فبما قضى به الصالحون . دا اجماع ده په دې فيصله کوه .

واثمة العدل فان لم يكن فأنت بالخيار . كه هغې کې هم نه وه نو ته اختيارمند يې .

فان شئت ان تجتهد رأيك فاجتهد رأيك . كه دې خوښه وي اجتهاد وکړه .

وان شئت ان تؤامرني فامرني . او كه دې خوښه وه چې ما سره دې مشوره كوله نو مشوره راسره وکړه .

ولا أرى مؤامرتك اياي الا خيرا لك والسلام . او كه ما سره دي مشوره وكړه دا به درته ډيره غوره وي .

يعنې مطلب دادی چې حضرت عمر رضي الله عنه ته دا معلومه وه چې قوه اجتهادي زما له شريح قاضي نه قوي ده نو كه ته اجتهاد کوي اجازت شته دي درته البته كه ماسره دې مشوره شريكه كړه نو دا بهتره ده ستا لپاره ولې هغه هم مجتهد دي او دې هم مجتهد دي خود شريح القاضي اجتهاد د حضرت عمر رضي الله عنه اجتهاد ته كله رسيدې شو په وخت د وجود د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه او د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ددې اشخاصو په موجودګي کې شريح قاضي ته ادباً هم په كار دي چې اجتهاد ونه كړي اګر كه اجازت شته دي ورته .

دا ددې دليل شو چې تابعي سره د وجود د اقوالو د صحابو نه اجتهاد كولې شي او په يو مجتهد باندې قول د صحابوو الزامي حجت هم نه دي دا څوک نه شي ويلي چې حضرت عمر رضي الله عنه دا ويلي او امام ابو حنيفه رحمه الله دا ويلي او امام ابو حنيفه رحمه الله دا ويلي صديق اكبر رضي الله عنه دا ويلي ويلي دي وي هغه هم مجتهدين وه دې هم مجتهد وه د صحابوو اقوال په دوي الزامي حجت نه دي سره له دې هغوي ادب كړي دي هغوي دا وايي :

اذا جاء من الرسول الله فبرأس والعين واذا جاء من الصحابه نختار بينهم .

امام صاحب وايي د صحابوو اقوالو کې مونږ فقيه د غير فقيه نه غوره كوو هغې پسې ذهاب كوو بيا .

واذا جاء من التابعين . او چې كله د تابعينو نه راشي بيا جګړې ورسره كوو .

لانهم رجال ونحن رجال . هغه هم سړي دي مونږ هم سړي يو د تابعي قول نه شم منلې .

دارنګې سنن ابن ماجة جلد ۱ صفحه ۳۷ :

حدثنا ابو بكر بن ابي شيبة حدثنا عبدالله بن يزيد عن سعيد بن ابي ايوب حدثني ابوهاني حميد بن هانئ الخولاني عن ابي عثمان مسلم بن يسار عن أبي هريرة قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من أفتي بفتيا غير ثبت فانما اثمه على من افتاه .

چا چې فتوی ورکړه په یوه فتوی باندې چې هغه ده ته پوره ثابته نه وه نو ګناه یې په هغه چا ده چا چې فتوی ورکړې ده که څوک وایي چې دې کې استدلال څه ده استدلال یې په دې طریقه ده دوي وایي چې هر سړي به دلیل غواړي او د مفتي او مجتهد په خبره به عمل نه کوي دلیل به غواړي دا حدیث د دوي د دې قول بطلان کوي چې نه مفتي چې فتوی ورکړه عوام به هغه عملي کوي اوس که دا فتوی د بې دلیله ورکړې وه هغه خلکو پرې عمل کړې دي هغه ګنهګار نه دي .

اثمه على من افتاه . چا چې فتوی ورکړي هغه نیول کیږي که چیرته هر څوک مامور وایي په طلب د دلیل باندې نو بیا دلته د هغوي د پاره د عمل ګنجائش نه وه او د خطاء په صورت کې دا مفتي نیول کیدو ولې اوس دې حدیث نه معلومیږي چې مفتي فتوی ورکړه او دا فتوی غیر ثبت وه چې خطاء شو او خلکو ده په فتوی عمل وکړو هغوي خو به عمل کوي هغه ګنهګار نه دي مفتي ګنهګار دي .

ددې نه وروسته بل حدیث راځي او هغه دې حدیث سره تعارض لري هغه دا چې مجتهد کله اجتهاد وکړي او حق ته ورسیږي هغه له دوه اجره دي او چې کله په اجتهاد کې خطا شي نو یو اجر دي ور له او دلته وایي چې ګناه په مفتي شته دي هغلته دا وایي مجتهد چې خطا هم شي یو اجر ورکول کیږي ګناه نشته وربانديې .

نو دا دواړه حدیثین تا ته دا مسئله ښکاره کوي چې رجال په یو حکم یو انداز کې نه دي کوم سړي چې د اجتهاد مقام ته ورسیده هغه که حق ته ورسیده دوه اجره دي که حق ته ونه رسیده ګنهګار نه دي که خطا هم شو او خلکو پرې عمل کوه هغه له یو اجر دي او کوم مفتي چې مجتهد نه وي فتوی ورکوي نو که دې صورت کې دې حق ته ورسیده فَبِهَا که حق ته ونه رسیده والاثم على من افتاه چا چې پرې عمل وکړو د هغه ګناه ده پسې راځي .

تول حدیثین تعارض لري یو خوا فرمایي چې مجتهد خطاء شي اجر دي بل خوا فرمایي

ګنهګار دي نو هغه د مجتهد سره دي او داد غير مجتهد مفتي سره دي دوي اهل د اجتهاد نه دي دد ې زماني علماء هم اهل د فتوو دي خو اهل د اجتهاد نه دي چې اهل د اجتهاد نه دي نو دوي به ډير زيات احتياط کوي که دليل د مجتهد قول پيدا شو فَبِهَا ګني ځان نه دې خبره نه کوي که يې وکړه ګنهګار ده که خطاء شو او هر چې مجتهدين حضرات دي د هغوي نيتونه صفا وه باطن يې صفا وه خپل کوششونه يې کړي بالفرض که يو مسئله کې بيا هم خطاء شوې او دا امت ورپسې روان وي ګنهګار نه دي هغه ته په هغې اجر ميلاويږي .

دارنګې صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۳۶ :

حدثنا اسماعيل بن ابي اويس قال حدثني مالك عن هشام بن عروة عن ابيه عن عبدالله بن عمرو بن العاص قال سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول ان الله لا يقبض العلم انتزاعاً .

خداى تعالى دا علم نه قبض کوي په غونډه .

ينتزعه من العباد . چې ګنې وي باسي د عبادو نه .

ولكن يقبض العلم بقبض العلماء . ليکن قبض کوي علم په قبض د علماء سره مراد له علماء مجتهدين دي .

حتى اذا لم يبق عالماً . تر دې چې عالم مجتهد به پاتې نه شي .

اتخذ الناس رؤوساً جُهالاً . وبه نيسي خلک رؤساء جُهلاء .

فسئلوا . پوښتنې به ترې کوي .

فأفتوا بغير علم . فتوى به ورکوي بغير د اجتهاد نه .

فضلوا و أضلوا . په خپله به هم ګمراه غير به هم ګمراه شي .

هغه علماء چې مجتهدين دي چې هغوي فتوى ورکوي مع علمٍ هغوي پسې چې چا اتباع وکړه ضلال نه شو هغه خو حق دي خو چې کله سړي غير مجتهد شو او بلا علم يې فتوى ورکړه او بيا پسې چا اقتداء وکړه .

فضلوا و اضلوا . خطر دي وهابيانو ته مونږ ته نه دي مونږ ته خو الحمد لله د يو عالم مجتهد مع العلم فتوى کړې ده او مونږ پسې ذهاب کړې دي او دوي عوامو جهالو وهابيانو

او جماعة المسلمين عثمانيانو پرويزيانو ته خطره ده چې دوي دې زمانه کې د خپلو کبراء پسې تللې دي او خپله نه پوهيږي او ددوي دا کبراء مفتيان علماء هم نه دي مجتهدين هم نه دي ړانده دي .

نو دې صورت کې دوي ته خطره ده چې فضلوا و اضلوا .

دارنګې معجم الکبير جلد ۱۵ صفحه ۱۲۶ :

حدثنا عبدالله بن وهيب الغزي حدثنا محمد بن ابي السري حدثنا رشيدين عن زبان بن فايد عن سهل بن معاذ بن انس عن ابيه ان امرأة اتت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

يوه زنانه راغله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته . فقالت ان زوجي . وي ويل زما خاوند .

انطلق غازياً في سبيل الله . تللې غزا في سبيل الله لره .

وكنت أقتدي بصلاته اذا صلّى . ما به د هغه د مانځه اقتداء کوله چې کله به هغه مونځ کوه .

دې ځای نه استدلال دي چې په زمانه د صحابوو کې بي بيانو د خاوندانو تقليد کړې دي خاوند يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دين زده کړي چې واپسي کورته راغلي بي بي د هغه اقتداء کړي دا ماموره په دې نه وه چې ته به کتاب الله او سنت رسول نه اخذ کوي هرې بي بي کتاب الله او سنت رسول کله زده کولې شو بس د خپل خاوند اقتداء وکړه .

وبفعله . د هغه د فعل اقتداء مې کوله .

فاخبرني بعمل يبلغني عمله حتى يرجع . نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرې رد ونه کړو چې ته کتاب الله او سنت رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې ولې نه ځې چې خاوند پسې ځې.

دارنګې سنن ترمذي جلد ۴ صفحه ۶۶۵، ۶۲۵ بيروت چاپ :

حدثنا سويد بن نصر اخبرنا ابن المبارك عن المثنى بن الصباح عن عمرو بن شعيب عن جده عبدالله بن عمرو قال سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول خصلتان .

دوه کارونه . من كانتا فيه . چې دا وي په چا کې .

كتبه الله شاكراً صابراً. خدای تعالی هغه ليکي شاکر صابر.

ومن لم تكونا فيه لم يكتبه الله شاكرا ولا صابرا. او كه دا دوه كارونه په کې نه وي هغه ته شاکر صابر کې حصه نه ورکوي.

اول: من نظر في دينه الى من هو فوقه فاقتدى به.

هغه څوک چې ګوري په دين کې هغه چا لره چې ده نه په دين او علم کې اوچت وي اقتداء پسې کوي.

ومن نظر في دنياه الى من هو دونه فحمد الله على ما فضله به عليه كتبه الله شاكراً صابراً.

نو دا شاكر او صابر شي په دين کې اعلم لوي عالم ګوره اقتداء پسې كوه نو ته به شاکر صابر يې او په دنيا کې چې د ځان نه آدون وي هغه ته ګوره نو ته به شاکر صابر يې.

ومن نظر في دينه الى من هو دونه ومن نظر في دنياه الى من هو فوقه فأسف على فاته منه لم يكتبه الله شاكراً ولا صابراً.

كه ددې عكس دې وكړو نو بيا د شاكرينو صابرينو نه، نه راځي.

دارنګې سنن الكبرى للبيهقي جلد ٦ صفحه ٢١٠:

أن عمر بن الخطاب رضي الله عنه خطب الناس بالجابية.

جابيه کې تقرير کړې وه خطبه يې معروفه وه.

فقال من أراد. چې څوک غواړي.

أن يسأل عن القرآن. چې سوال کوي د قرآن نه.

فليأت. لاړ دې شي ابي بن كعب لره دي په تجويد او قراءت کې معروف دي.

ومن أراد أن يسأل عن الفرائض. كه د چا اراده وي چې سوال وكوي د مسائلو د علم ميراث نه.

فليأت. لاړ دې شي زيد بن ثابت لره.

ومن أراد أن يسأل عن الفقه. كه د چا اراده وي چې سوال كوي د فقهي جزئياتو نه.

فليأت . لاړ دې شي معاذ ابن جبل لره .

ومن اراد ان يسأل . كه د چا اراده وي غوښتنه د مال كوي .

فليأتني . را دې شي ما لره .

فان الله تعالى جعلني له خازنا وقاسماً . دا زمانه د صحابو وه موجود ناست اکثر صحابه دي لړ په کې تابعين دي په کار دا وه چې عمر فاروق رضی الله عنه ويلي واي کتاب الله او سنت رسول ته ځي کنه قرآن شته حديث شته اخذ ترې کوي .

هغه ته معلومه وه چې دا ټول اخذ د هغې نه نه شي کولې چې نه يې شي کولې د هغې لپاره اوس فقهاء په کار دي ليل خلک په کار دي نو وبي ويل چې قرأت کې لاړ شي أبي بن كعب رضي الله عنه پسې په علم ميراث کې زيد بن ثابت رضي الله عنه پسې لاړ شي په فقه کې معاذ بن جبل رضي الله عنه پسې لاړ شي د غه مجلس کې به عبد الله بن مسعود نه وه ګنې هغه به يې هم ياد کړې وه چې ده پسې لاړ شي او يا به يې دواړه معي کړې واي معاذ بن جبل رضي الله عنه دا فقه چې کوم اړخونه لري د فقه څه مسائل چې دي هغه عميق سخت مسائل دي څه لانجمني د اجاراتو او د شفعې مسائل دي .

معاذ بن جبل رضي الله عنه افقه د صحابو دي په مسئله د قضا کې او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه افقه د صحابو دي په عامه فقه او جزي مسائلو د فقه کې مسئله د نكاح کې مسئله د عتاق کې په مسئلو د صلواة زكواة حج وغيره کې .

نو ګويا کې دا هدايه چې څلور جلد ده ۲ جلد کې چې کومه فقه بيانيږي دې کې معاذ بن جبل رضي الله عنه ماهر وه ځکه هغه په يمن کې قاضي پاتې شوې وه ډيرې مسئلې ورته راغلې وې دا مونږ او تاسې پاکستان کې علم کړي کنه فقه مو ويلي ده هدايه مو هم ويلي ده تاسو لاړ شئ افغانستان ته يو سپين ږيري فقيه عالم سره د ځمکي لانجو کې مخامخ شي چې ښځې درنه او باسي چې هغه څومره په فقه پوهيږي ليکن هغه بيا بيرته راولي دي مسائلو ته رفع اليدين ته امين بالجهر ته په دوه ټکي هم نه پوهيږي ګوره د فقه دا حصه کې کمزوري دي قرآن کريم ترجمه کې کمزوري دي په آحاديثو کې کمزورې وي ليکن د فقه هغه باب ته که تاسو لاړې چې کوم د قضاء باب دي بيا مقابله ورسره نه شي کولې .

چې کله لانجمنه مسئله وي دا نوي فارغين ملايان خو دلته بريت تاووي کنه هلته قوميان هم پرې غره وي چې دا خو نوي له حقاني فارغ شوي ته راځه دا پټې راته وګټه د تره ځامن ورته وايي نو په شريعت کې فيصله کوي هلته ملا صاحب ورته کينوي هغه جانب مقابل ورته يو زوړ فقيه بابا راولي ورته يې کينوي دوه تکې هم ورسره دا ملا نه شي ويلې په فقه کې نو کومو ځايونو کې چې معاذ ابن جبل رضي الله عنه ته افقه ويلې شوې دي هغه په دا قضاء کې دي او کومو کې چې عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دي هغه بيا دې نوره حصه د فقه کې اعلم دي افقه دي او داسې ده هم.

دا اوس چې کوم زمونږ ملګري د افغانستان په مختلفو ولاياتو کې د قضا په مقام پاتې شوې وي اوس يې چې مونږ چيرو نو هغوي په فقه بنه پوهيږي ځکه هغوي ته روزمره ضروريات راغلي وي دوي باندې باعث جوړ شوې فقه يې کتلې ده مونږ نه هغوي په دغه مسائلو بنه پوهيږي.

دا رنګې صحيح البخاري جلد ۲ صفحه ۲۲۰ کې د صحابه کرامو زمانه کې په دې مسئله اختلاف وه عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما طائف ته تللې وه نو مکه معظمه کې تول رايه او مذهب داد عبدالله بن عباس رضي الله عنهما معروفه وه او په مدينه منوره کې زيد بن ثابت پاتې شوې وه د مدينې منورې په خلکو کې د زيد بن ثابت رضي الله عنه مذهب او رايه رائجه وه.

په يمن کې معاذ بن جبل رضي الله عنه پاتې شوې وه هغلته مذهب د هغه چليده په عراق کې عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه وه هغلته د عبدالله ابن مسعود او د حضرت علي رضي الله عنه مذهب چليده دا صحابه چې چيرته لاړ د همغو مذهبونه خواره شول نو د حج وخت دې عبدالله ابن عباس رضي الله عنه حج ته راغې د مدينې منورې څو صحابه دې استفتاء ترې نه کوي دې مسئله کې لانجه ده چې کله زنانه طوافي فرضي وکړي بيا دا زنانه په مياشتني بيماري بيماره شي دا طواف صدر چې طواف رجوع ده افاقي لپاره د واجباتو نه ده دا په دې زنانه باقي دي که نه دي دا به اوس انتظار کوي چې پاکه شي طواف وکړي او که ځي به په دې کې اختلاف وه د حضرت زيد ابن ثابت رضي الله عنه مذهب او فيصله داوه چې دا به انتظار کوي ترڅو پاکه شي طواف صدر به کوي بيا به ځي.

او د عبدالله ابن عباس رضي الله عنه او د جمهورو صحابو رضي الله عنهم فقهاء دا رأيه ده چې دا

به ځي .

**تنفر** . چې دې طواف فرضي کړي دي .

طواف صدر رجوع له دې نه ساقط دي حقه مسئله د عبد الله ابن عباس رضي الله عنه وه خو مونږ دا ځای ددې لپاره پيش کوو چې دوي خلکو ته وايي چې د صحابوو زمانه کې تقليد نه وه يا د يو شخص کمال اتباع نه وه .

چې دوي به ترې دلائل غوښتل نه داسې نه وه مدني خلک راغلل ابن عباس رضي الله عنه ته وايي چې زنانه په دغه وخت کې بيماره شي څه به کوي وايي : **تنفر** ځي به .

عبارت د حديث د مذکورې صفحې دادی :

**عن عکرمة** رضي الله عنه **ان اهل المدينة سألوا ابن عباس** رضي الله عنه **عن امرأة طافت ثم حاضت قال لهم تنفر** . اجازت دي ورته لاړه دې شي .

**قالوا لا نأخذ بقولك وندع قول زيد** . مدني صحابه څه ورته وايي ستا قول نه اخلو حال دادی چې مونږ ستا په قول کې د حضرت زيد رضي الله عنه قول پريږدو دا نه شو کولې .

**قال** . عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل .

**اذا قدمتم المدينة فسئلوا** . بنه ځي چې کله مديني منورې ته لاړې د حضرت زيد رضي الله عنه نه بيا تپوس وکړي .

**فسألوا فکان فيمن سألوا ام سليم** . دلته حضرت ام سليم موجود وه .

**فذکرت حديث صفية رواه خالد وقتادة عن عکرمة** . بي بي ام سليم ورته د حضرت صفيه حديث پيش کړو چې صفيه بي بي داسې وه چې همدغه شان طواف کړې وه او مياشتني بيماري ورباندې راغله نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته چا وويل چې صفيه بي بي بيماره شوې ده وي ويل چې پوزه دې په خاورو ککړه شي دې ته به مونږ بيا انتظارونه کوو وايي رايې ولي چې راغله وايي طواف زيارت دې کړي دي وايي هاو وايي راځه چې ځو روان شول .

نو دليل خو پيدا شو اتباع وشوه زمونږ اخذ له دې نه دي چې دوي خلکو ته داسې نظر ورکوي چې د صحابوو زمانه کې قرآن او سنت پسې تلل وه مذهبونه ، نه وه مذهب وه کنه

اهل مدینه د حضرت زید متبع وه او عبدالله ابن عباس ته وايي ستا قول مونږ په مقابل د قول د حضرت زید رضي الله عنه کې نه منو.

دارنګې سنن الکبری للبیهقي جلد ٦ صفحه ۲۱۰:

عن أنس بن مالك قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ارحم أمتي بأمتي ابوبكر واشدهم في أمر الله عمر واصدقهم حياءً عثمان.

او په علم میراث کې لوي پوه زید ابن ثابت دي.

وأقرؤهم أبي وافرضهم زيد بن ثابت وأعلمهم بالحلال والحرام معاذ وان لكل أمة أمينا وأمين هذه الأمة أبوعبيدة بن الجراح.

نبي علیه السلام دا تقریر څه د پاره کوي د همدې لپاره یې کوي چې هر څوک په هر علم کې همغه شخص ته مراجعه وکړي ددې تلقین نه ورکوي چې کتاب الله او سنت رسول دي عوام او خواص په کې په اصل کې یو شان دي نه دې کې فرق دي.

دارنګې المؤطاء د امام مالک جلد ۲ صفحه ۶۰۷:

عن يحيى عن سعيد ان رجلاً سأل اباموسى الاشعري. یو سړي د ابا موسی صاحب نه تپوس وکړو.

اني مصصت عن امرأتي من ثديها لبناً. د خپلې بي بي نه مې مص وکړو د ثدینو د هغې نه څه شیدې راغلې حرمت شته او که نه.

فذهب في بطني. شیدې زما خیټې ته لاړې:

فقال ابوموسى لا أراها الا قد حرمت عليك. ابو موسی اشعري رضي الله عنه فتوی ورکړه بله رایه نه لرم مګر دا چې بي بي درباندې حرامه شوه دلته عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ناست دي.

فقال عبدالله بن مسعود انظر ماذا تفتي به الرّجل. لږ سوچ وکړه دا په څه دې فتوی سړي ته ورکړه.

فقال ابوموسى فماذا تقول انت. عبدالله ابن مسعود ته ابو موسی وايي ستا څه رایه ده.

فقال عبدالله بن مسعود لا رضاعة الا ما كان في الحولين. د رضاع حرمت خو نه ثابتیږي

مگر هغه چې دوه کالو کې وي دې نه اخوا حرمت نشته.

فقال أبو موسى لا تسألوني عن شيء ما كان هذا الحبر بين اظهركم.

وايي دا بحر د علم چې درکې موجود وي تعبيريې ترې نه په حبر وکړو لکه يهودو به علماء ته حبر ويلي چې دا بحر او دا علم د عبدالله ابن مسعود درکې موجود وي.

بيا مانه پوښتنې ونه کړې ګوري ابو موسی اشعري خلکو ته د عبدالله ابن مسعود د تقليد امر کوي دا تقليدِ شخصي دي چې دې موجود دي ده پسې ځي ما پسې مه ځي.

دا يوه افترا هم ده په احنافو باندې غير مقلدين وايي چې دوي تقليد شخصي کوي او تاسو هم په دې کلکيږي مه الياس ګهمن او د هغه رفقاء تنظيم نوجوانان احناف په تقليد شخصي باندې زور لګوي محمد امين صفدر او کاړوي او سرفراز خان صفدر صاحب دا ټول تقليد شخصي ته زور ورکوي خو دا زما په فکر خطاء کيږي مونږ کله هم تقليد شخصي نه دې کړي.

چې څوک په مونږ دا اعتراض کوي افتراء ده او مه تاسو په تقليد شخصي کلکيږي دا زمونږ احناف شوافع موالک حنابله چې دې تقليد شخصي نه کوي تقليد معين کوي دې کې فرق دي تقليد شخصي دا معنی چې دوي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ را ټينګ کړې دي بل د هيچا پسې نه ځي دا غلطه ده افتراء ده کنه په ډير مسائلو کې مونږ د يارانو پسې تللي يو د امام محمد امام يوسف پسې تللي يو ډير مسائل دي په متقدمينو متأخرينو کې مونږ متأخرينو پسې تللي يو.

دا زمونږ فتاوی نه ګوري وعليه الفتوی چې کوم صفق به وي مونږ هغې پسې لاړ شو نو دا دليل ددې دي چې مونږ تقليد شخصي په مونږ افتراء ده دا هر مذهب والا تقليد شخصي نه کوي تقليد معين کوي يعني حنفيت شافعيت مالکيت حنبليت په دې څلورو کې تقليد معين کوي چې حنفيت دي دا حنفيت خو يواځې قول ابو حنيفه ته نه وايي قول ابي يوسف قول امام محمد قول طحاوي دې کې شپږ (٦) درجې د فقهاء مجتهدينو دي چې مجتهدين مطلق دي مجتهدين في المذهب دي.

مجتهدين اصحاب د مسائلو متروکه وو دي مجتهدين د اصحاب د ترجيح دي او مجتهدين د اصحاب تطبيق دي او شپږمه طبقه اصحاب الفتيا دي او هغه اصحاب الفتيا

چې مجتهدین نه وي ففتواهم لیس بفتوی بل هم ناقلي فتوی المجتهدین .

عبدالحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ په عمدة الرعاية کې هغه دا تصریحات کړې دي .

اما مفتي زماننا ففتواهم لیس بفتوی بل هم ناقلي فتوی المجتهدین .

نو چې هغه زمانه کې د مفتیانو فتوی فتوی نه وه بلکې ناقل به د فتوی د مجتهد وي نو دې زمانه کې به څنګه قبوله شي .

څومره مفتیان که د اکوړي وي که د شافیصل وي که د هر ځای وي دوي نه تپوس وکړي مقلدین یې که مجتهدین که وي ویل چې مونږ مجتهدین یو نو فتوی بیا قبوله ده که وي ویل چې مقلدین یو د مقلد فتوی نه قبلیږي خاص کر علماء لره بیا او عوام خو به یې قبلوي عوام خو د خپل امام خبره به هم مني اوس زما مقتدیان دي چې زه مسئله بیانوم دوي به یې مني اعتماد به کوي او چې دوي په ما بې اعتماده وي چې دا غلطې مسئلې کوي نو ما ولې مسجد کې پریږدي بیا چې په ما دومره بدګمانه وي په کار هم ده چې ما مسجد کې پرېږنه دي نو یو خو عوام دي عوام خو د خپل امام هم منلې شي هغوي خو به د اکوړي یا بل ځای په فتوی اعتماد کوي .

البته یو تاسې طالبان یې علماء دي هغه چې پوهیږي په فقه باندې هغوي نه بیا ددې زمانې فتوی فتوی نه ده بلکې دوي ناقلین د فتوی د مجتهدینو دي دا ددې لپاره درته وایمه چې دلته فتوی ډیرې متضادې راوځي که مونږ اوس دا خلکو ته وایو چې د اکوړي ډیره بهترینه مدرسه ده او چې د فتوی لپاره بل خوا مراجعه ونه کړي او چې چیره مو د اکوړي فتوی ولیدله فاقبلوه قبوله یې کړي .

نو لنډ کشف الغطاء عن تبلیغ النساء مفتي سیف الله صاحب وایي د ښځو لیږل تبلیغ ته په دغه شکل جائز نه دي او حافظ شوکت پرې لوي کتاب لیکلې د اکوړي نه یې فتوی راویستلې چې دا جائز دي ښځې تبلیغ ته وباسي نو ګوره متضاد شو دغه شان ډیر مسائل دي مونږ یې ګورو اکوړي نه یو مفتي صاحب یوه فیصله کوي بل مفتي صاحب بله فیصله کوي متضاد دي چې متضاد دي نو عام خلکو ته ددې پرچار مه کوي چې د اکوړي فتوی قبولې کړي بیا خاص کر نن صبا د عبدالحق صاحب په وخت کې د اکوړي د مدرسې یو

اهمیت وه د مفتي فرید صاحب په وخت کې بل اهیمت وه د مفتي سیف الله صاحب په وخت کې بل اهمیت وه.

اوس في الحال چې د هغې کوم مفتي دي عبدالقادر هغه باندې ګوري د حنفي ګمان ونه کړي هغه خو کلک اشاعتي دي نظام پور ته یو ځل دده فتوی چا راوړه استفتاء ترې نه شوې وه چې یو امام دي دعاء بعد سنت کوي د حیله اسقاط قائل دي او درود سلام وایي او دعا بعد الجنازة کوي څه نور مسائل یې لیکلي وه دا امام څنګه دي.

عبدالقادر ورته فتوی ورکړې وه چې داد اهل فسقو نه دي او دا په فسق عقیدوي مبتلاء دي او فقهاو لیکلي دي چې کوم فاسق امام وي مسجد نه یې ویستل په کار دي دا امام له دې مسجد نه او باسه داد اکوړي د مفتي عبدالقادر فتوی وه تاسو اوس دا منلې شي چې دعاء بعد السنة فسق شي نو مفتي فرید صاحب ددغې مدرسې مقالات فریدیه کې مستحب ولې ورته وایي نو د عبدالقادر فتوی په هغه ورغله که وره نغله زما په وخت کې چې ما دوره حدیث کوله زه بیا وروسته لاړم ادریس شیخ صاحب ته ۱۵ ورځې حقانیه کې زه ومه او د ماسپخین مونځ به انوار الحق صاحب په امامت کیدلو د ماسپخین مانځه بعد ما کتلي انوار الحق صاحب به باقاعده دعاء بعد سنت کوله چې د عاء بعد سنت بدعت شي.

نن صبا خو د اشاعت زور دي ورباندې دا دعاګانې یې پریښې دي خو لکه هغه وخت سره زما په یاد باندې او د هغې نه مخکې شیخ عبدالحق صاحب چې وه هغه خو داسې کلک احناف وه دا مدرسه چې چا جوړه کړې په مرور د وخت سره زمونږ هغه علمي اداري پاکې نه پریږدي خارجي لاسو نه دي وریسې اوس وخت کې خو دا مشکل جوړ شو چې په دفاع پاکستان کې اشاعتیان وهابیان او حقانیان سره خلط شول نو دا وخت بیل دي د حقاني هغه اهمیت اوس نه دې پاتې شوې که تاسو د مفتي عبدالحق صاحب او د مفتي فرید صاحب د زمانې ګمان پرې کوي بلکې داد اغیارو ښکاره شوې ده او ټول په کې دا نور خلک ننوتې دي او کوم چې زمونږ حنفي فقهاء دي لکه مفتي سیف الله صاحب دیر بابا جي او یا نور هغه خواران ډیر مغلوب حال کې نن صبا هلته وخت تیروي.

باقاعده طالبان مونږ ته حکایت کوي چې مفتي سیف الله صاحب مونږ ته بار بار وویل چې فتاوی حقانیه دا زمونږ فتوی نه ده چې قبوله یې نه کړي چې کومه شائع شوې ده وایي

مونږ ورته وویل مولانا صاحب چې تاسو یوه رساله ولیکي په دې باندې وایي دې وخت کې
مونږ قدرت نه لرو چې رساله ولیکو مونږ دا اختیار اوس نه لرو نو دومره پرې دا نور خلک
قابض شوې او اختیار د هغوي سره دي چې دا مشائخ زمونږیې مغلوب کړي دي بنه پوهیږي
چې دا فتاوی حقانیه نور مفتیان ناست دي او منصوب کوي حقاني لره او خلک پرې اعتماد
کوي ډیر هغه مسائل چې مفتي فرید صاحب مخکې په مقالات وغیره کتب کې هغې ته د
استحباب عقیده ورکړې ده فتاوی حقانیه هغې ته بدعت وایي او شنیع بدعت یې گڼي.

من جمله د هغې نه میلاد مصطفی دي چې په میلاد څومره ردود په فتاوی حقانیه کې
موجود دي او داسې نور مسائل مقصود مې په دې سره د خپلو اکابرو رد نه دی دا زمونږ د
شیوخو شیوخ دي مفتي فرید صاحب دا زمونږ د ادریس شیخ صاحب شیخ دي شیخ شیخ
باندې رد کول عظیمه بې آدبي ده زما مقصد په هغوي رد نه دي اوس في الحال حقاني ته
دومره اهمیت مه ورکوي دا خلک د پخوانیو علماو په مینه حقاني ته اوس هم په همغه نظر
گوري نو په هغه نظر نن صبا حقاني ته مه گوري او مه په دې مینه ورځي چې هلته به تاسو
اوس حنفیت زده کړي.

نو راځم خپل مقصد ته چې مونږ تقلید معین کوو دا تقلید شخصي نه دي واضحه مثال
ددې لپاره به مونږ پیش کړو د جمعې لمونځ نه بعد مونږ شپږ (۶) رکعته کوو او دا مذهب د
یارانو دي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ وایي د جمعې لمانځه نه وروسته څلور (۴) رکعته سنت دي
نو که مونږ تقلید شخصي کولې نو په کار دا وه چې مونږ څلور (۴) رکعته سنت کولې.

بل مثال په افغانستان چې کله د طالبانو امارت اسلامي حاکم وه او په ټول افغانستان
خشکي راغلې وه نو طالبانو خلکو ته حکم وکړو چې په هره ولسوالي کې د استسقاء
لمونځونه وکړي دا مذهب د یارانو دي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ په مسئله د استسقاء کې قائل د
نیت صلواة نه دي بلکې د دعا دنیت دي که تقلید شخصي وای نو ولې حنفي امارت هلته د
لمونځونو اعلانونه کول داسې ډیر مسائل پیدا کیږي چې فقه وکتلې شي چې مفتی به د
یارانو قول وي ذهاب هغوي پسې دې او چې مفتی به د متأخرینو قول وي ذهاب هغوي پسې
دي دا دلائل ددې دي چې مونږ تقلید شخصي نه دي کړي.

البته باني زمونږ د فقهې حنفي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ دي مستخرج د اصولو ددې امام

ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دي په دغه اصطلاح باندې سړي تغلیباً ویلی شي چې زه حنفي یمه او امام محمد امام ابي یوسف ته نسبت نه کوي هغې اصل ته نسبت کیږي .

دا رنګې مصنف ابن ابي شیبة جلد ۷ صفحه ۲۳۹ د معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه معروف حدیث پیش کوي باب لګوي : باب في القاضي ما ینبغي ان یبدأ به في قضائه .

قاضي او مجتهد چې فیصله کوي اول اخذ به د څه نه کوي .

حدثنا ابو بکر قال حدثنا وکیع عن شعبة عن ابي عونٍ عن الحارث بن عمرو الهمداني عن رجالٍ من اهل حمص من اصحاب معاذ عن معاذٍ ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لما بعثه .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې ولیږه ده لره او لیږلو یې یمن ته .

قال کیف تقضي ؟ ورته یې وویل فیصله به څنګه کوي ؟

قال أقضي بما في کتاب الله قال فان جاءك امر لیس في کتاب الله ؟. که یو څیز راشي چې په کتاب الله کې نه وي .

قال اقضي بسنة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . هغه وویل بیا به په آحادیثو فیصله کوم.

قال فان لم تکن سنة من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قال أجتهدُ رأْيِ . اجتهاد بالرأیه به کوم.

دا حدیث ددې دلیل دي چې بعضې مسائل په کتاب الله او سنت رسول کې نه وي هغه زمانه کې وایي چې نه وي وایي :

اجتهد رأیي . په خپله رایه به اجتهاد کومه .

قال الحمد لله الذي وفق رسولَ رسولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

هغه ذات لره ثناء ده چې موافق یې کړه رایه د خپل رسول د استاذي د رسول خپل سره یعنې دې زما رسول دي په معنی لغوي ما لیږلي دي او زه د خدای تعالی رسول یمه زما رایه یې دده له رایې سره موافقه کړه او دده رایه یې له ما سره موافقه کړه یعنې معنی چې زما هم دغه رایه ده چې مسئله کتاب الله او سنت رسول کې پیدا نه شي اجتهاد پسې دې سړي لاړ شي خو چې اهل د اجتهاد وي .

ابو داؤد شریف کې چې دا حدیث مذکور دي حاشیه ورباندې کوم ظاهر بین لګولې ده

د دغه حديث په سند کې راويان ټول ثقه دي په دې جرحه نه شي کولی عن رجال من اهل حمص من اصحاب معاذ ، باندې جرحه ده د معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شاگردان له اهل حمص نه له هغوي نه وايي مونږ روايت کوو وايي پته نه لګي چې دا څوک دي نو په حاشيه د ابوداؤد يې ډير لوي بحث په دې کړي او په دې سند يې جرحې کړي وهابيان هم جرحې کوي پرې نو تاسو د هغوي جواب له سر کړه د هغوي ابن قيم نه ورکړې اعلام الموقعين جلد ۱ صفحه ۲۰۲ د ابن قيم کتاب ته ګوري دا خو به مني راسره :

فهذا حديث وان كان عن غير مسمين . اګر که د دې سند کې څه خلک شته دي چې مسمی نه دي .

فهم اصحاب معاذ فلا يضره ذلك . چې هغه اصحاب د معاذ دي دا څه تاوان نه ورکوي سند ته .

لانه يدل على شهرة الحديث . وايي ځکه دا دليل د شهرت الحديث دي .

وأن الذي حدث به الحارث بن عمرو عن جماعة من اصحاب معاذ لا واحد منهم .

وايي دده د امقصد نه دي چې ګنې ما ته معلوم نه دي اصل کې داد معاذ ډيرو شاګردانو بيان کړې دي نو هغه شهرت ته اشاره ده چې د هغه ډيرو شاګردانو ما ته بيان کړي دي .

وهذا ابلغ في الشهرة من ان يكون عن واحد منهم لو سمي .

دا ابلغ دي په شهرت د حديث کې چې شي دي له دې نه چې نوم يې اخيستې وای چې فلاني راته ويلي دي .

كيف وشهرة اصحاب معاذ بالعلم والدين والفضل والصدق بالمحل الذي لا يخفى .

او اصحاب د معاذ چې دي په علم په دين په فضل او صدق کې په هغه انداز کې دي چې په چا خفي نه دي .

ولا يعرف ، معروف نه دي .

في اصحابه متهم ولا كذاب ولا مجروح بل اصحابه من افاضل المسلمين وخيارهم لا يشك

اهل العلم بالنقل في ذلك .

چې څوک اهل علم په نقل او اسماء الرجال دي هغوي په دې کې شک نه لري .

آخره کې وايي دې سند کې شعبه راغلې :

كيف و شعبة حامل لواء هذا الحديث . د دې حديث جنډه شعبه اوچته کړې ده .

وقد قال بعض ائمة الحديث اذا رأيت شعبة في اسناد حديث فاشدد يديك به .

سند د حديث کې دي چې شعبة وليده نو منګولي پرې کلکې کړه يعنې بيا په کې سوچ نه مه کوه چې دا به قوي وي که ضعيف .

فكذلك حديث معاذ لما احتجوا به جميعاً غنوا عن طلب الاسناد له .

چې هر کله دومره جمع غفيرې پرې اخذ کړې دي او محدثينو را اخيستي دي دا غني شوله دې نه چې ته طلب د سند ورته ولټوي .

دا رنګې اعلام الموقعين جلد ۱ صفحه ۱۴ يو بل روايت نه مونږ اخذ کوو :

وقال يزيد بن عمير لما حضر معاذ بن جبل الموت قيل يا ابا عبد الرحمن اوصنا .

معاذ بن جبل ته چا وويل وصيت راته وکړه د مرګ په وخت کې .

قال اجلسوني . ده وويل ما کينوي يا راسره کيني .

ان العلم والايمان مكانهما من ابتغاهما وجدهما .

علم او ايمان ځای د هغې چې څوک ولټوي مونده به يې کړي .

يقول ذلك ثلاث مرات . درې ځل يې دا خبره وکړه يعنې طلب غواړي .

بيا يې وفرمايل :

التمس العلم ، علم طلب کړي .

عند اربعة رهط . د څلورو کسانو سره .

عند عويمر بن ابي الدرداء وعند سلمان الفارسي وعند عبد الله بن مسعود و عند عبد الله بن سلام .

نو دا نصيحت او وصيت په دې باندې کوي چې تاسو دې زمانه کې علوم دوي نه واخلي ځکه دا فقهاء دي ولي ورته دا نه وايي چې کتاب الله او سنت رسول شته دي ځي وريسې دا علماء ورته ولې يادوي.

دارنګې اعلام الموقعين جلد ۱ صفحه ۲۱:

**والدين والفقه انتشر في الأمة عن اصحاب ابن مسعود واصحاب زيد بن ثابت واصحاب عبدالله بن عمرو و اصحاب عبدالله بن عباس رضي الله عنه.**

ددې څلورو کسانو نه دا دين خور شوې دي په امت کې.

**فعلم الناس عامته عن اصحاب هؤلاء الاربعة.**

دا امت کې چې دا عام علم ګوري دا ددې څلورو صحابو و شاګردانو نه خپور دي.

**فاما اهل المدينة فعلمهم عن اصحاب زيد بن ثابت وعبدالله بن عبد بن عمر.**

علم د اهل مدينې له اصحابو د زيد بن ثابت وعبد الله بن عمر نه دي.

هر چې اهل مکه دي:

**وأما أهل مكة فعلمهم عن اصحاب عبدالله بن عباس**، نه دي.

هر چې اهل عراق دي:

**واما اهل العراق فعلمهم عن اصحاب عبدالله بن مسعود**، نه دي.

**قال ابن جرير وقد قيل ان ابن عمر وجماعة ممن عاش بعده بالمدينة من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم انما كانوا يفتون بمذاهب زيد بن ثابت.**

عبد الله بن عمرو او څو مره صحابه چې مدينه منوره کې وه دوي به فتوى ورکوله په مذهب د زيد ابن ثابت باندې.

نو دا ثابتوي چې صحابه د بل صحابي تقليد کوي په مدينه منوره د زيد بن ثابت مذهب رائج وه يعنې فتوى وه هغې نه دين جوړ شوې وه او دا نور صحابه ابن عمرو وغيره چې دي هغوي د زيد ابن ثابت مذهب باندې فتوى ورکوي.

دا جماعت المسلمين حمقاء سوچه خره راغونډ دي خره سره څوک بحث نه کوي

کوتک ورته نيسي دوي اوس څه شروع کړې دي ، نبي عليه السلام به چې کله قضاء حاجت ته تللو نو :

ابعد في المذهب . هلته مذهب په معنی د مصدر ميمي سره دي په معنی د ذهاب سره ابعد في المذهب معنی ابعد في الذهاب په ذهاب کې به يې ډير لرې والې کولو .

دا جماعت المسلمين چې دي د فقهاء مذاهب چې کوم دي او مذهب په مصدر ميمي سره نه شي بيلولې ، دلته مذهب په معنی د تګلاري سره دي ظرف دي او هغه مذهب په معنی د نفس ذهاب سره دي مصدر ميمي دي .

نو دا دي صحابه په مذهب د زيد بن ثابت باندې فتوی ورکوي العياذ بالله ددې اوس دا معنی شوه چې مذهب ليټرين ته وايي او دوي فتوی د زيد بن ثابت ليټرين وه په هغې فتوی ورکوله نو داسې احمقانو سره به څه بحث مباحثه وشي بغير د کوتک نه خو يې بله لار نشته .او اصطلاح د مذهب په زمانه د صحابوو کې هم موجوده شوه چې هغه زمانه کې هم د مذهب اصطلاح وه .

دارنګې صحيح مسلم معرب بيروتي چاپ جلد ۵ صفحه ۱۳۱ :

عن ابي قيس مولی عمرو بن العاص عن عمرو بن العاص انه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : اذا حكم الحاكم فاجتهد :

حاکم چې فيصله وکړي اجتهاد وکوي .

ثم أصاب فله اجران . چې حق ته ورسيږي دوه اجره دي ورلره .

واذا حكم . چې فيصله وکړي ، فاجتهد ، اجتهاد وکړي ثم اخطأ خطاء شي فله اجر ، يو اجر دي ورته .

## حکايت :

ما سره د يو سلفي په دې کې مباحثه وه ما ته يې وويل چې د ائموو په اقوالو کې د خطاء امکان شته دي او که نشته ما ورته وويل ولې نشته وايي دا خطاء معين ده که غير معين ده ما ورته وويل غير معين ده وايي دا خو په هره مسئله کې امکان د خطاء شته دي کنه

تاسو ولې داسې څيز پسې ځي چې امكان د خطاء لري ما ورته وويل الله دې ما د بې آدبي نه وساتي بې ادبي نه كوم خو تا باندې نقض كوم.

نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نه امكان د خطاء شته دي كه نشته امكان د گناه خو نشته او امكان د خطاء څنگه دي شته كنه وايي چې شته دي ما ورته وويل معين ده كه غير معين وايي غير معين ده ما ورته وويل چې دا اعتراض دلته هم مراجعه كړه كنه هره خبره يې مه منه كيدې شي خطاء وي.

وايي نه نه د پيغمبرانو خطاء خو دين دي كنه ما ورته وويل چې د مجتهدينو خطاء هم دين دي وايي د مجتهد خطاء څنگه دين دي ما ورته وويل دين دي كنه نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

**ثم اخطأ فله اجر.** چې خطاء شي يو اجر دي ما ورته وويل چې دا اجر په دين كې وي كه په بې ديني كې وي وايي چې په دين كې وي ما ورته وويل چې دا خطاى دين نه وايي نو اجر به به ورته نه ميلاودې نو د مجتهد خطاء دين وي. داسې وهميات يې راغونډ كړي دا خو خطاء كيږي داسې كيږي او هغه سې كيږي.

دې عامو وهابيانو ته زه وايم دا ستاسو پشاوري او ستاسو رستمي ولې نه خطاء كيږي چې لكي مو كلكه ورته راټيولې ده چې كفر كوي كفر ورسره كوي او چې ايمان راوړي ايمان كې پسې روان يې په اعتقادياتو ايمانياتو كې مو راتينگ كړې دي.

نو امكان د خطاء خو هر چا ته كيدې شي عامو وهابيانو ته زه دا خبره كوم جماعة المسلمين ته زه دا خبره كوم چې په دغه معمولي خبره مو مذهب پرېښې دي نو ستاسې په دې مشر كې خو هم دا خبره شته كنه چې امكان د خطاء لري نو څنگه پسې بيا روان ياستي؟

## حكايت :

په پشاور اكبرپوره كې يو ځل ما ته يو كس ډيره مخكيني خبره ده يو قادياني راوسته داد قاديانيانو بعضې اعتراضات او د وهابيانو يو شان اعتراضونه دي نوجوان وه لږه ډيره يې راغلې وه خو وهابي وه وايي دا قادياني شوې دي ما ورته وويل چې ته څنگه قادياني شوې يې وايي زما څه شبهې وي او زه په ډيرو علماو وگرځيدم تبليغي جماعت سره شوم

اشاعتیانو سره شو مه وهابیانو سره جماعت المسلمین سره شو مه خو زما هغه شبهي چا دفع نه کړي یو اځیني یو اځي په قادیانیت کې ماته اطمینان او سکون حاصل شو .

دا همداسې شکیان وي یو پر بل یې خرڅوي تبلیغیان یې په اشاعتیانو خرڅوي اشاعتیان یې په وهابیانو خرڅوي همداسې شکونه زیاتیږي زیاتیږي اخر قرآن کریم کې هم شک راشي چې دې کې هم دروغ العیاذ بالله شته دي دا بیا خپله مرتبه د قادیانت ده او چې قادیانت کې پاتې شوي او که عیسویت ته لاړې یوه خبره ده د خور او ورور دي سره .

ما ورته وویل چې دا څنګه شبهې دي ستا چې دا دومره علماء د مختلفو جماعاتو تاته نه شوي حل کولې ما ورته وویل یوه خو مونږ ته هم پیش کړه ؟ وایي شبهه مې داده چې زه عیسوي ته دعوت ورکومه نو زه یې حنفیت ته ورکړم شافعیت ته یې ورکړم او که مالکیت او حنبلیت ته یې ورکړم .

ګورئ دا اعتراض که سوچ وشي د وهابیانو دي اکثر وهابیان دا اعتراض کوي چې مونږ کافر ته دعوت ورکوو نو د کوم مذهب دعوت ورکړو وایي که زه یې حنفیت ته دعوت کړم دا مې څلورمې حصې د دین ته دعوت کړو او که ټول دین او دغسې شافعیت مالکیت او حنبلیت ما هغه ته وویل چې ته عیسوي ته دعوت ورکوي اول د عقیدې دعوت ورکوي او که د عمل ؟ وایي د عقیدې دعوت ورکوم .

ما ورته وویل چې ما ته دا وښایه چې دا څلور امامان په عقیده کې سره مخالف وه چې دا یو اهلسنت وه بل د خوارجو نه وه بل معتزلي وه خو دا ټول اهلسنت دي یوه عقیده ده کنه ته خو به اول د عقیدې دعوت ورکوي کنه وایي هاو ما وویل د دې څلورو په عقیده کې څه اختلاف شته دي وایي نه ما وویل چې کله دې عقیدې ته دعوت ورکړو او سړي مسلم شو د هغې نه بعد جزي فروعي اختلافات وي که د دې اختلافاتو اعتراض ته په دوي باندې کوي نو عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رفع الیدین نه کول او ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه رفع الیدین ثابت دي بعضې روایاتو کې .

نو په دوي اعتراض مه کوه په صحابوو دا اعتراض وکړه چې اختلاف یې ولې کړي دي دلته مه کوه دا هلته وکړه وایي یاره جي یو اځې تا زما تسلي وکړه زه به مدرسې ته درځمه او زما ډیرې شبهې دي چې دا دفعه شي زه به بیرته مسلمان شم بس نور مې خوله پرې را خلاصه

کړه ما وویل تا بې دینه دې خدای له سره مسلمان نه کړي چې ته د دین نه اوړي قادیاني کیږي مونږ به تا ته ستر ګي اړوو چې ته به راځي زمونږ دین ته او ته دې سر نه واخله خپو پورې شکل ته دې و ګوره ستا خو شکل د عیسوي دې ما ورته وویل چې تا خپل ځان په شریعت برابر کړې دې چې ته عیسوي ته دعوت ورکوي دعوت لا نشته بیا به زه یو خت کې دعوت ورکوم بیا به یې څنګه ورکومه او مذهب دې او سه نه ورته پریښې دې او به کوم ځای کې را رواني دې او پرتوګ دې کوم ځای کې ویستلې دې ځان خو یو ځل په شیعت برابر کړه بیا دعوتونه ورکوه.

نو ددې خلکو سره نرمي نه دې په کار د انسان ایمان خرابیږي قادیاني سره به سړي څه دلائل وو ایي د قادیانیانو کتب تاسو به نه وي کتلې ما یې رسائل کتلې وایي العیاذ بالله یولس (۱۱) ځایه قرآن کریم کې دروغ راغلي نو دوي سره به اوس څه مناظرې کوي یا به حجت او دلیل بازي ورسره کوي که مفتي محمود صاحب یا د بریل بعضې مشائخو مناظرې ورسره کړې دې نو د ضرورت په بناء شوې دې چې هغه وخت کې بهتو د بې نظیري پلار پرې ودریده څوک یې نه پریښو دل چې دا مره کړي او بلکې هغه ته یې مسلم ویلي نو که هغه وخت کې بحث ورسره نه وای شوی نو په سرکاري سطحه دوي د مسلمینو نه شمارل شوې وای.

همغه د مفتي محمود صاحب او د بعضې بریلوي مشائخو د مقابلو نتیجه ده چې اوس دوي ته په سرکاري سطحه مسلمانان نه ویل کیږي ډیرې مناظرې ورسره وشوي په آخره کې د بریل د مشائخو نه یو شیخ ورسره مباهله وکړه درې ورځې وروسته له دې مباهلې نه بیا دې مرداریږي درې ورځې مخکې ورسره مناظره وکړه آخر کې مباهلې ته لاړل چې مباهلې ته لاړل نو مباهله کې ورته وویل چې ته وایه که چیرته ته پیغمبر یې او زه در نه منکریم نو خدای تعالی دې ما زر تر زره په لیټرین او ګندګي کې مړ کړي او که ته پیغمبر نه یې او دروغ دې ویلي نو ته هم داسې ووایه بس داسې یې وویل دریمه ورځ وه

لیټرین ته ننوتلې وه او په لیټرین کې مردار شوې وه همغې مباهلې ووهلو.

نو له داسې بې دینه او د هغه له پیروانو سره به څه مناظرې وشي پدیوه رساله کې چا ترې تپوس کړې دې چې مقام ستا به اوچت وي که د حضرت حسین عَلَيْهِ السَّلَامُ ؟ واه واه عجباً دې ورته وایي ضحک یې پسې کړې دې وایي هغه موچي چې یوه ورځ یې زما څپلي رنګ

کړې وي که چیرته حسنین د هغه مقام ته ورسیږي نو ډیر دې خوشحاله شي دده په رسائلو کې دا الفاظ موجود دي خو تاسو په دې باندې د شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ اکفار الملحدین عن ضروریات الدین داد قادیانیانو په کفر لیکل شوې دي چې داد ضروریاتو د دین نه منکر دي.

مسئله د ختم نبوت چې ده داد دین د ضروریاتو نه ده وایي له دې نه منکر کافر دي په دې مسئله یې دا کتاب لیکلي دي نو بیا آخره کې دده په کتابونو راليږلي چې ده داسې داسې خبرې کړې دي نو داسې کس سره به سړي څه مناظره وکړي بس سړي څه وکړي.

پاکستان دې اچار دي د دنیا مرداري دې کې راغونډه ده سوچ مو شته ورته دا مرداري نه په عربو کې شته نه په افغانستان کې به دوه قادیانیان پیدا کړي چیرته؟ زمونږ استاد به ویل که د جال پیدا شو ډیر متبعین به یې پاکستانیان وي ځکه دا بې غوره بې سوچه قوم دي په یو ملک کې داسې څه شته لکه په دې پاکستان پنجاب کې چې څه کیږي بنځې هم په کې پیرانې دي بس د پیسو سخت شوقیان دي چې حق چا ته وایي بعضې بریلیان خفه کیږي چې حق به نه وایي مونږ به اوس حق نه وایو احمد رضا خان ته سپک نظر مه کوي هغه سم سړي وه کتب یې وګورئ.

دارنګې مستند ابي عوانة جلد ۸ صفحه ۲۰۸ چې کله خلک په یو عالم یو بادشاه باندې راغونډ وي او دې وخت کې یو بل سړي راځي او تفرق جوړوي دده حکم د قتل دي عرفجة بن ضریح راوي ده:

**قال سمعت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول: من أتاكم.** څوک راغې تاسې ته په داسې حال کې.

**وامركم جميع على رجل واحد.** چې ستاسو د دین خبره راغونډه په یوه سړي باندې یا کار د دین مو راغونډ وه یوه سړي باندې.

**يريد ان يشق عصاكم.** اراده یې دا وه چې ماته کړي امساء ستاسو.

**ويُفرق جماعتكم.** او ستاسې ډله تفرقه کړي.

**فاقتلوه.** مړ یې کړي.

اوس دا حدیث ددې دلیل دي چې په کومه علاقه باندې په یو سړي خلک راغونډ شول

خارج نه بل سړي راغلو تفرقه جوړوي قوت ختموي د هغه حکم د قتل دي د وهابیانو بل کار نشته دي په افغانستان پاکستان انډیا ثمرقند بخاری په دې مضافاتو کي عراق ترکیا مصر دي ټولو علاقو کې.

امرکم جمیع علی رجلٍ واحد. امام ابو حنیفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ باندې خلک راغونډ وو.

اوس د بل ځای نه یو کس راځي اراده لري قوت مومات کړي تفرقه راولي حکم د هغه فاقتلوه قتل یې کړي.

دارنګې اعلام الموقعین جلد ۱ صفحه ۲۲:

وقال عبدالرحمن بن زید بن اسلم فرمایي. لمّا مات العبادلة. عبادله ثلاثه یا اربعه چې وفات شول عبدالله بن عباس وعبدالله بن عمر وعبدالله بن عمر او عبدالله بن مسعود چې دوي وفات شول.

صار الفقه في جمیع البلدان الی الموالي. لاړه دا فقه په ټولو بلادو کې ازاد کرده غلامانو ته لاړه.

هو فکان فقیه أهل مکة عطاء ابن أبي رباح وفقیه اهل الیمن طاؤس وفقیه اهل الیمامة یحیی بن ابي کثیر وفقیه أهل الکوفة ابراهیم وفقیه اهل البصرة الحسن و فقیه اهل الشام مکحول و فقیه اهل خراسان عطاء الخراساني.

دا واضح دلیل ددې دي چې په هغه زمانه کې دغلته فقهاء وو په هغو علاقو کې د هغوي مذهب رائج وو.

اعلام الموقعین جلد ۱ صفحه ۲۵ دې فصل کې دا ښایي چې یو ځای په عراق کې څو مره مفتیان ناست وو چې هر سړي دې اخذ د کتاب الله او سنت رسول نه کوي نو مفتیانو ته بیا څه ضرورت وو.

فصل المفتین بالکوفة.

وکان من المفتین بالکوفة علقمة بن قیس النخعي والاسود بن یزین النخعي و هو عم علقمة بن شرحبیل الهمداني ومسروق بن الاجدع الهمداني وعبیدة السلماني وشریح بن القاضي

وسليمان بن ربيعة الباهلي وزيد ابن صوحان وسويد بن غفلة والحارث بن قيس الجعفي وعبدالرحمن بن يزيد النخعي وعبدالله بن عتبة بن مسعود القاضي وخيثمة بن عبدالرحمن وسلمة بن صهيب ومالك بن عامر وعبدالله بن سخبرة وزر بن حبيش وخلاس بن عمرو وعمرو بن ميمون الاودي وهمام بن الحارث والحارث بن سويد ويزيد بن معاوية النخعي والربيع بن خيثم وعتبة بن فرقد وصلة ابن زفر وشريك بن حنبل وابو وائل شقيق بن سلمة وعبيد بن نضلة وهؤلاء اصحاب علي وابن مسعود .

داد حضرت علي رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه شاګردان وه دا فقهاء وه په دغه علاقه کي .

واكابر التابعين كانوا يفتون في الدين ويستفتيهم الناس واكابر الصحابة حاضرون يجوزون لهم ذلك .

ابن قيم دا ټولې صفحې په رد د هغه چا باندې لېولې چې څوک وايي هر سړي به اخذ د كتاب الله او سنت رسول نه كوي هر سړي اخذ نه شي كولې صحابه رضي الله عنه به موجود وه دې تابعينو به فتوی وركولې .

واكثرهم اخذ عن عمرو وعائشة رضي الله عنها . او زياتو به اخذ له عمرو او عائشة رضي الله عنه نه كړې دي .

وعلي ولقي عمرو بن ميمون الاودي معاذ بن جبل وصحبه واخذ عنه .

او اخذ يې د معاذ بن جبل رضي الله عنه هم كړي .

واوصاه معاذ عند موته . او حضرت معاذ رضي الله عنه په وخت د مرګ كې ميمون الاودي ته وصيت كړې وه .

ان يلحق بابن مسعود فيصحبه ويطلب العلم عنده ففعل ذلك . چې مانه بعد لاړ شه ابن مسعود رضي الله عنه لره د هغه صحبت وكړه او علم د هغه نه زده كړه .

ويضاف الى هؤلاء ابو عبيدة وعبد الرحمن ابنا عبدالله بن مسعود وعبدالرحمن بن ابي ليلى

اخذ عن مائة وعشرين من الصحابة.

دومره صحابوو نه يې اخذ کړې دي.

وميسرة وزاذان والضحاك ثم بعدهم ابراهيم النخعي وعامر الشعبي وسعيد بن جبير والقاسم بن عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود وابوبكر بن ابي موسى ومحارب بن دثار والحكم بن عتيبة وجبلة بن سحيم وصحب ابن عمر ثم بعدهم حماد بن ابي سليمان وسليمان بن المعتمر وسليمان الاعمش ومسعر بن كدام ثم بعدهم محمد بن عبدالرحمن بن ابي ليلى وعبدالله سبرمة وسعيد بن أشواع وشريك القاضي والقاسم بن معن وسفيان الثوري وابوحنيفة والحسن بن صالح بن حي ثم بعدهم حفص بن غياث ووكيع بن الجراح واصحاب ابي حنيفة كابي يوسف القاضي وزفل بن الهذيل وحماد بن ابي حنيفة والحسن بن زياد اللؤلؤي القاضي ومحمد بن الحسن قاضي الرقة وعافية القاضي واسد بن عمرو ونوح بن دراج القاضي واصحاب سفيان الثوري كالاشجعي والمعافي ابن عمران وصاحبي الحسن بن حي الزولي ويحيى بن آدم.

دا دومره فقهاء يواځې په کوفه کې تير شوې دي د هيچا مذهب اوس نه ښکاري که اوس څوک وايي چې يواځې حنفي مذهب ولې شته او نور نشته دي نو دا اوس د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ کمال شو او که نقص تر ديرو کلونو پورې د دې هريوه څه ناڅه مقلدين وه دا هريوه به چې کوم کلي کې وه هلته به د هغه مذهب وه په مرور د وخت سره يې نورو شاګردانو خدمت ونه کړو تدوين د فقه ونه کړو او امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللّٰهُ ته خدمت امام محمد بن حسن شيباني وکړو چې دده ټوله فقه يې راغونده کړه په شکل د متن باندې په هغه متن شروح وشول د هغې نه بعد دده په اصولو کې سرخسي وغيره لوي لوي خلک راغلل هغه ورته اصول راغونډ کړل د هغې نه بعد فقهاء محدثين پيدا شول د مذهب د تدوين خدمت يې ورته وکړو.

باقي دې نورو فقهاء د مذهب تدوين ونه شو لکه څنګه چې د صحابوو د مذاهبو تدوين نه وه شوې په دې وجه هغه مذاهب متروک شول او دغه څلور مذاهب دنيا کې ښکاره شول دې نه دې څوک دا فهم نه کوي چې ګني نور مذاهب نه وه مذاهب د صحابوو زمانه کې

هم وه د تابعينو زمانه کې هم وه د تبع تابعينو په زمانه کې هم وه البته دا څلور مذهبونه چې وه ددوي د فقه تدوين وشو دا پاتې شول دا نور مذاهب په مرور د وخت سره ختم شول ، اوس که يو سړي بل مذهب د کوم صحابي يا تابعي جوړوي تدوين نشته لار به ترې ورکه شي .

زمونږ يو دوست دي عبدالحکيم مظهري صاحب هغه وايي نن صبا هر طالب نيم غير مقلد دي شکيان کيږي مه شک مه کوي په نحو کې تقليد کوي په اصول حديث کې تقليد کوي په ټولو کې تقليد کوي چې فقه ته راشي بيا انکار کوي تپوس ترې وکړي قرأت سبعه ولې شو هلته تقليد روا دلته ناروا عجيب انصاف دي .

دارنګې المدخل الى سنن الکبرى للبيهقي جلد ۱ صفحه ۴۴۸ خپل سند سره د موسى ابن اعين په روايت سره وايي :

قال قال الاوزاعي . امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ به فرمايل .

کنا نضحك ونمزح . مونږ به کله خندل هم مزاح به مو کوه .

فلماصرنا يقتدى بنا . چې مونږ هغې مقام ته ورسيدو چې اقتداء مونږ پسې کولې شي .

خشيت ان لا يسعنا التبسم . مونږ ويريدو له مزاح او ضحک نه .

اوس مونږ ته جواز د تبسم هم نشته دا ددې دليل دي چې د امام اوزاعي زمانه کې خلکو دغه ائمو و پسې اقتداء کړې ده او هغوي دومره احتياط له ځان سره کړې دي چې مزاح او ضحک يې نه کول چې دا غير مونږ پسې اقتداء ونه کړي چې يا ره دې خاندي زه هم خاندمه .

اضواء البيان في ايضاح القران بالقرآن جلد ۷ صفحه ۳۱۶ کې د تقليد دا موضوع ډيره طولاني چيړي دا کوم دلائل چې مخکې تير شول دا هم په کې ضمني ځاى پر ځاى نقل کوي او قانع کن دلائل په دې باندې وايي او د وهابيانو هغه اصل باطلوي چې د معتزلو و په شان چې هر عامي به طلب د دليل کوي مفتي او د مجتهد نه يعنې هر سړي به فتوى نه مني اعتماد به نه کوي دليل به وايي نو دې په دې خبره ټول شواهد پيش کوي چې دا نه شي کيدې چې هر احد دې طالب د دليل شي بلکې قول د غير به مني او تسليم به کوي چې تقليد دي په دغه آيت کريمه باندې تفصيل کوي دده د امضمون ته لږ په غور وګورئ نو په خپله به ستا اصلاح د

عقيدې وشي چې په هيڅ شکل له تقليد نه وتل نه دي په کار .

﴿ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ .

دې باندې بحث کوي .

**فامر سبحانه من لا علم له ان يُسأل من هو اعلم منه** . رب کائنات دلته امر کړې دي هغه چا لره چې عالم نه وي يعني مجتهد نه وي سوال به کوي له هغه چا نه چې اعلم وي له ده نه .

**وهذا نص قولنا** . دې نه مخکې څه بحث ده په تقليد کړې دي وايي دا آيت کريمه نص زمونږ د قول دي زمونږ قول څه شي چې زه مثبت د تقليد يمه دغه آيت پرې نص دي .

**وقد ارشد النبي ﷺ من لا يعلم الى سؤال من يعلم** . نبي عليه السلام بنود نه کړي ده هغه چا لره چې علم نه لري بايد سوال وکړي له عالم نه په هغه حديث کې چې جهاد ته تللې وه څه کسان او په هغوي کې د يوه سر زخمي شو او بيا هغه محتلم شو د احتلام په صورت کې له زخم سره هغه ولمبل او هغه وفات شو نو د هغې باره کې فرمايي :

**ألا سألوا اذا لم يعلموا** . نبي عليه السلام ته چې اطلاع راغله وايي ولې يې پوښتنه نه کوله .

**اذا لم يعلموا** : ګورئ دا صحابه وه او بشاوري وهابي وايي مونږ عالمان يو مونږ ته د سوال ضرورت نشته په صحابو کې هم داسې صحابه وه چې په دغه وخت کې دغه مسئلې ته فهم و نه رسيده .

**ألا سألوا اذا لم يعلموا** . چې خپله پوهه نه شول ولې تپوس د بل نه و نه کړو .

**انما شفاء العيّ السؤالُ** . د بيمار شفاء خو په سوال کې ده کنه چې خپله نه پوهيده سوال به يې کړې وه له غير نه او رد يې وکړو په هغه چا باندې چې بغير د سؤال د غير نه يې ولې دا عمل وکړو او روايت کې دا هم راغې دا خو دې خلکو وژلې دي خداى دې مړه کړي تپوس به يې کړې وه له چا نه چې مسئله څه ده .

**وقال ابو العسيف الذي زنى بامرأة مستأجرة** . دا مختصر حديث وايي ابو العسيف راغې يو زنانه سره يې زنا کړې وه وي ويل :

**اني سألت اهل العلم** . ما د اهل علمو نه تپوس وکړو . **فاخبروني** . خبر يې راکړو .

ان ماعلى ابني جلد مائة وتغريب عام . زما په ځوي باندې سل دُرې دي او تغريب د عام دي .

وان على امرأة هذا الرجم .

نو دې استدلال کوي :

فلم ينكر عليه تقليد من هو اعلم منه .

دا صحابي ابو العسيف د نبي عليه السلام په وړاندې وايي :

سألت أهل العلم فاخبروني . ما د اهل علمو نه تپوس وکړو ما ته يې داسې خبر راکړو وايي نبي عليه السلام پرې رد ونه کړو چې زه موجود يمه تا ولې د اهل علمو نه تپوس کړې دي نو انکار يې ونه کړو په ابو العسيف باندې په تقليد د مَن هو اعلم کې .

دا رنګې : وهذا عالم الارض عمر قد قلد ابابكرٍ : دغه زمانه کې د ځمکې لوی عالم حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د ابوبکر صديق رضي الله عنه تقليد کړې دي دليل ته ګوري :

فروي شعبة عن عاصم الأحول عن الشعبي ان ابابكر قال في الكلالة اقضي فيها .

د کلاله باره کې فيصله به کوم :

فان يكن صواباً فمن الله ، که حق وي فمن الله ، وان يكن خطاءً فمني ومن الشيطان والله منه بريء .

کلاله چا ته وايي :

هو مادون الولد والوالد . چې نه ورته ولد وي نه ورته والد وي .

فقال عمر بن الخطاب اني لأستحيي من الله . ما ته حياء راځي د الله نه .

ان اخالف ابوبكر . چې مخالفت د ابوبکر رضي الله عنه وکړمه هغه چې دا فيصله وکړه نو زما هم دا فيصله ده دا وايي تقليد د ابوبکر صديق رضي الله عنه دي کنه دغه تعريف د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه چې مادون الولد والوالد په کلاله کې په حديث مرفوعه کې نشته د نبي عليه السلام نه د دې څه ذکر نه دي راغلې دا هغه خپل اجتهاد کړې د کلاله په لغت کې او حضرت

عمر رضي الله عنه يې تقليد كړې دي.

وصح عنه . او صحيح ثابت دي له عمر فاروق رضي الله عنه.

انه قال له رأينا لرأيك تبع. اى صديق اكبر رضي الله عنه زمونږ رايه ستا د راي تابع ده.

وصح عن ابن مسعود رضي الله عنه انه كان يأخذ بقول عمر . د ابن مسعود رضي الله عنه نه صحيح ثابت دي ده وويل په دې خبره كې په قول عمر فاروق رضي الله عنه اخذ په كار دي.

او دارنګې د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه مصنف ابن ابي شيبة را اخيستې دي چې عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته چا وويل چې د سحر په مانځه كې دعاء قنوت ولې نه وايي هغه به نه ويله زمونږ مذهب هم نه دي . وايي ته ولې قنوت نه وايي هغه ورته جواب كې وويل كه دا ټول خلك په يو شعب روان شي او عمر فاروق رضي الله عنه په بل شعب روان شي نو :

لسلكتُ . زه به مزل شروع كړم په لاره او شعب د عمرِ فاروق رضي الله عنه باندې .

لو قنت عمرُ لقنت عبدالله . كه عمرِ فاروق رضي الله عنه د سحر په مانځه كې دعاء قنوت ويلې وايي نو ما به هم ويلې وه چې هغه يې نه وايي زه يې نه وايمه نو دا تقليد د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دي عمرِ فاروق رضي الله عنه لره .

وصح عن ابن مسعود رضي الله عنه انه كان يأخذ بقول عمر . دې ځاى كې هغه حديث ته اشاره كوي :

وقال الشعبي عن مسروق كان ستة من اصحابِ رسول الله صلى الله عليه وسلم يفتون الناس .

شپږ صحابو د نبي عليه السلام فتوى به يې وركولې .

ابن مسعود وعمر بن الخطاب وعلي وزيد بن ثابت وابي بن كعب وابو موسى رضي الله عنهم وكان

ثلاثة منهم يدعون قولهم لقول ثلاثة .

په دوي كې دا دري چې وه ددې دريو قول ته به يې خپله خبره پريښوده زيد ابن ثابت ابي بن كعب ابو موسى الاشعري ددوي خبره به چې د ابن مسعود عمر بن الخطاب د علي المرتضى مقابله كې راغله نو خپله به يې پريښوده هغوي پسې به يې ذهاب وكړو .

كان عبدالله يدع قوله لقول عمر . عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه به خپله خبره په مقابله د

خبرې د عمر فاروق رضي الله عنه کې پرېښودله د هغه تقلید به یې کوه .

وکان ابوموسی یدع قوله یقول علي . ابوموسی الاشعري به خپله خبره د حضرت علي رضي الله عنه مقابله کې پرېښودله .

وکان زید یدع قوله لقول ابي بن کعب وکان جندب ما کنت ادعُ قول ابن مسعودٍ لقول احد من الناس . جندب به ویل چې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رایه د هیچا مقابله کې نه شم پرېښودلې دا تقلید د هغه دي .

وقد قال النبي صلی الله علیه وسلم ان معاذا قد سن لکم سُنة فکذلك فافعلوا . مسئله داسې وه چې صحابي په زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کې اجتهاد کوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې تائید کوي چې د مسبوق متعلق دا مسئله روانه وه د نبي علیه السلام په ژوندګي کې چې چا نه به رکعتونه تللې وه رابه غلل نو امر دا شوې وه چې تاسو اول دا دوه وکړي بیا مونږ سره شریک شي .

ممکن نبي علیه السلام به دا اجتهاد کړې وه مأمور به من الله په دې نه وه نو چې څوک به راغې یو یا دوه رکعته به ترې تللې وه نو هغه به دا کول نو چې یو رکعت به یې کوه هلته به بل ترې تیر شو نو ضرور امام به سست مونځ کوه او دوه به لږ تیز وکړو لا اقل چې آخر رکعت کې به یې امام ګیر کړو نو د مسبوق باره کې دا فیصله وه .

معاذ ابن جبل رضي الله عنه چې سوچ وکړو نو اجتهاد یې وکړو نو هغه وویل چې داسې وشي چې مسبوق نه کوم رکعات تللې وي هغه دې وروسته بیا راوګرځوي را دې شي متصل دې او دریږي د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم یې دا رأیه ډېره خوښه شوه نو وې فرمایل:

ان معاذا قد سن لکم سُنةً . معاذ رضي الله عنه تاسو ته یوه طریقه رائجه کړه .

فکذلك فافعلوا . نن نه بعد به داسې کار کوي .

في شأن الصلاة حیث اخر فصل ما فاته من الصلاة مع الامام بعد الفراغ وکانوا یصلون ما فاتهم اولاً ثم یدخلون مع الامام .

نو دې باره کې د معاذ بن جبل رضي الله عنه اجتهاد په زمانه د نبي علیه السلام کې وشو او نبي

عَلَيْهِ السَّلَامُ سنت ورته ويلي تګلاره يې ورته ويلي او عمل باندې يې امر وکړو .

وقد امر الله تعالى بطاعته وطاعة رسوله وأولى الامر وهم العلماء او العلماء والأمراء وطاعتهم تقليدهم فيما يفتون به . دا تقليد ددوي دي په فتوو ددوي کې .

فانه لو لا التقليد لم يكن هناك طاعة تختص بهم . چې دا تقليد نه شي نو د امراو طاعت ته کومه معنی پاتې نه شوه بيا .

يوه خاصه معنی بيا څه شوه ددوي د تقليد که څوک وايي چې تقليد دا معنی چې قرآن او سنت په دليل کې پيش کوي بيا به يې مني نو دده قول ته بيا څه اعتبار شو هغه خو په اطيعوا الله اطيعوا الرسول کې راغلل بيا چې هغه هر کله دليل پيش کړو د کتاب نه د سنت نه او تا اتباع وکړه نو تا خو اتباع د کتاب الله او سنت رسول وکړه .

د أولى الأمر د خاصيت د تخصيص د اتباع څه پاتې شول بيا .

وقال تعالى : ﴿وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ﴾ . ( التوبة آيت : ۱۰۰ )

دې وايي : وتقليدهم اتباع لهم ، تقليد د صحابو اتباع ددوي شوه .

ففاعله ممن رضي الله عنهم . فاعل د اتباع او د تقليد د صحابو هغه څوک وګرځيده چې رضي الله عنهم ، خدای تعالی ترې راضي شو دا حکم پرې ثابت شو .

ويكفي ذلك الحديث المشهور . دا حديث هم کافي دي .

اصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم . کوم صحابي زما پسې مو چې اقتداء وکړه سمه لار مو موندله .

نو دا اقتداء د صحابو و نه شوه چې تابعين به اقتداء ددوي کوي .

وقال عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ من كان منكم مستنا فليستن بمن قد مات .

څوک که تګلاره غواړي هغو دې هغه چا پسې لاړ شي چې کوم مړه دي .

فان الحي لا تؤمن عليه الفتنة . په ژوندي باندې د فتنې امان نه وي کيدې شي خرڅ

شوي وي.

اولئك اصحاب محمد أبر هذه الامة قلوباً. دا صحابه د نبي عليه السلام ډير د ابرارو نه دي په دې امت کې له جهته د قلب نه.

واعمقها علماً واقلها تكلفاً قوم اختارهم الله لصحبة نبيه واقامة دينه فاعرفوا لهم حقهم وتمسكوا بهديهم.

وپيژني دې صحابو ته حق ددوي د صحابو په هدايت تمسک وکړي.

فانهم كانوا على الهدى المستقيم و قد صح عن النبي صلى الله عليه وسلم انه قال عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين من بعدي.

وقال إقتدوا بالذين من بعدي ابي بكر وعمر واهتدوا بهدي عمار وتمسكوا بعهد ابن ام عبد. وقد كتب عمر الى شريح ان اقض بما في كتاب الله فان لم يكن في كتاب الله فبسنة رسول الله صلى الله عليه وسلم فان لم يكن في سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم فاقض بما قضي به الصالحون وقد منع عمر عن بيع امهات الاولاد وتبعه الصحابة رضي الله عنه.

ټولو صحابوو په حرمت د امهات الاولاد کې د حضرت عمر رضي الله عنه تابعداري او تقليد وکړو.

والزم بالطلاق الثلاث فتبعوه ايضاً. دري طلاق په يو ځل يې مغلظ وګڼل حضرت عمر رضي الله عنه يو صحابي هم مخالفت ونه کړو ټول صحابه متبع دده شول.

واحتلم مرة فقال له عمرو بن العاص خذ ثوباً غير ثوبك فقال لو فعلتها صارت سنةً.

يو ځل محتلم شو عمرو بن العاص ورته وويل دغه جامه پريږده بله واغونده ناوخته وه د سحر لمونځ قضا کيده او حضرت عمر رضي الله عنه لګيا وه هغه ځاى وينځلو په سفر کې وه حضرت عمر رضي الله عنه وويل که دا کار زه وکړم دا به سنت وګرځيږي خلک ما پسې اقتداء کوي بيا به وايي چې د احتلام په جامو کې مونځ نه کيږي له دې نه، به دين جوړ کړي دې نه معلوميږي چې خلک د عمر فاروق رضي الله عنه متبعين او مقلدين وه.

وقال ابي بن كعب وغيره من الصحابة ما استبان لك فاعمل به . چې خبره واضحه شوه عمل كوه .

وما اشبه عليك فكله الى عالمه . او چې خبره کې درته اشتباه شک پیدا شو عالم ته يې وسپاره .

وقد كان الصحابة يفتون ورسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حي بين اظهرهم . رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ژوندي وه صحابوو به فتوي ورکولې .

وهذا تقليد لهم قطعاً . دا نورو صحابوو د صحابوو تقليد وكړو .

اذ قولهم لا يكون حجة في حيات النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . ځکه د صحابي فتوى په وخت د حيات د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کې هيڅ دليل نه جوړيږي حجت نه دي د حجج ظاهريوو نه اګر که د هغه د وفات نه وروسته خو د احد الحجج نه دي خو د هغه په ژوند د صحابوو فتوى خو حجت نه وه نو بلا حجت يې د هغه خبره ومنله .

وقد قال الله تعالى : ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا۟ فِي ٱلدِّينِ وَلِيُنذِرُوا۟ قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوٓا۟ إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ .

فاوجب عليهم قبول ما انذروهم به اذا رجعوا اليهم وهذا تقليد منهم للعلماء .

وصح عن ابن الزبير انه سئل عن الجد والاخوة . د عبد الله ابن زبير نه چا تپوس وكړو چې جد دا خو سره معي شي مسئله څه ده .

فقال اما الذي قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لو كنت متخذا من اهل الارض خليلاً لاتخذته خليلاً . چې هغه صديق اكبر دي .

فانه انزله اباً . صديق اكبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جد په حكم د اب کې ګڼلي دي اب چې كله معي د اخوة سره وي څه حكم چې قرآن كريم بيان كړې دي همدغه حكم د جد دي .

مع الاخوة . وهذا ظاهر في تقليده له . دا د عبد الله ابن زبير د صديق اكبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په تقليد کې ظاهر دي چې دا په دې مسئله کې مقلد د هغه شو .

وقد اجمع الناس على تقليد الزوج للنساء اللاتي يهدين اليه زوجته .

وايي كه يو سړي وايي چې زه بې دليله خبر نه منمه نو هغه ته چې د واده په شپه دا خپله ښځه كوټې ته ورولي نو يوه ښځه بله ورسره وي ددې ناوي سره دا هغه ښځه ورته وايي چې دا ستا هغه ښځه ده چې نكاح پرې تړل شوې ده .

دا ددې ښځې خبره سره د دليله مني كه بدون د دليله يې مني وايي كه بدون د دليله يې مني نو تقليد كوي كه سره د دليله يې مني شواهد دې ترې وغواړي بله دې نه وي راوستلي عقلي شاهد پرې پيش كوي چې دغه سړي هم دليل نه خالي نه دي هغه ښځه چې ده كوټې ته بيولي ده دا يې د يوې ښځې خبره منلي ده او بلا حجت يې منلي ده هيڅ دليل ورسره نشته دا ستا ښځه ده كوټې ته يې راوستله .

وقد اجمع الناس . اجماع كړي خلكو په تقليد د زوج ښځو لره هغه ښځې .

يهدين اليه زوجته . چې دده ښځه دده كوټې ته بوځي نو دا خاوند به ددې ښځو تقليد كوي .

وجواز وطئيها تقليدا لهن في كونها هي زوجته . جائز دي خاوند لره وطي ددې ولي دې به تقليد ددې ښځو كوي په دې خبره كې چې دا دده همغه بي بي ده چې نكاح يې پرې تړلې .

واجمعوا على ان الاعمى يقلد في القبلة . اعمى به په قبله كې تقليد كوي او كه حجت به غواړي نو بناء به رانده ته څه دلائل وايي .

همدغه مثال د عوامو هم دي عوامو ته چې څوك دلائل په شريعت كې وايي همدغه شان دي لكه ړوند چې بناء نه دليل غواړي چې زه نه منمه چې قبله دې طرف ته ده ماته به دليل پيش كوي او س يې په څه شي قانع كوي .

نو جاهل چې عالم او مجتهد نه دليل غواړي همدغه مصيبت دي عالم چې څومره دلائل وايي جاهل پرې نه پوهيږي .

وعلى تقليد الزوجة مسلمة كانت أو ذمية ان حيضها قد انقطع فيباح للزوج وطؤها بالتقليد .

وايي د وهابي غير مقلد د ښځې مياشتني بيماري چې راغله وطي روا نه ده ورته او چې كله يې حيض ختم شي بيا ورته روا ده دا اباحت د وطي دده لپاره يوه مسئله شرعي ده او

په دې کې قول د ښځې ته اعتبار ده که ښځې ووېل چې زما بيماري ختمه ده نو دې به دليل غواړي کې بې دليله به يې خبره قبلوي بې دليله به يې خبره قبلوي چې بې بې وويل چې وې بنده شوې ده بس متصل بلا حجت يې قول قبول کړه ، او که دليل به غواړي ګوتې به په کې وهي چې ودريږه زه يې وينه ګورم چې وينه يې ودريدلې کنه څه جهال وهاييان دي .

دا عقلي دلائل او قياسات پيش کوي په دې باندې وايي اجماع د علماء ده چې دا سړي به تقليد د زوجې کوي زوجه مسلمه وي که ذميه وي نو د وطي اباحت په تقليد ثابت دي په دليل نه .

**ويباح للولي تزويجها بالتقليد لها في انقضاء عدتها .**

يوه ښځه ده خاوند طلاقه کړه دا لاړه ولې پلار يا ورور سره کيناستله ، اوس په دې عدت لازم دي د عدت په موده کې بل چا سره نکاح نه شي کولې .

اوس ولي دا بل چا ته په نکاح ورکوي نو په دې صورت کې به له ښځې نه تپوس کوي چې عدت دې ختم ده او که نه دې ختم ځکه عدت په قول د جمهورو حيض دي چې ښځه او نه وايي چې ما باندې ثلاثه حيض راغلي دي څوک پرې پوهيږي چې څو راغلي دي .

نو ولي به ترې نه تپوس کوي چې ثلاثة حيض دې تير شوي او که نه که هغې ووېل چې ثلاثه حيض مې تير شوې دي نو ولي به ددې ښځې تقليد کوي بلا حجة د خور او لور نه به طلب د دليل نه کوي چې ماته دليل او شواهد پيش کړه نو وايي چې مباح ده ولي لره تزويج د دغې ښځې بل چا ته ورکول په تقليد روا ده .

**وعلى جواز تقليد الناس للمؤذنين في دخول اوقات الصلواة .**

اذان چې کيږي وايي دا څومره خلک چې دي د اذان کوونکي مقلدين دي په دخول د وخت کې چا ترې دليل غوښتې دي چې مؤذن صاحب نقشه ښکاره کړه چې وخت داخل دي که نه دي داخل نو دلائل مه غواړه اعتماد وکړه چې دا مسلمان دي دا په دې مقرر شوې دي بې له وخته به اذان نه کوي نو خلک پرې اعتماد کوي نو تسليم قول د غير په دخول الوقت کې وکړو لکه اذان شروع شي او خلک روژه ماته کړي همدغه تقليد دي د مؤذن خبره يې ومنله بلا دليل او په دې اجماع ده ټول خلک روژه ماتوي .

**ولا يجب عليهم الاجتهاد .** واجب نه دي په خلکو اجتهاد .

ومعرفة ذلك بالدليل . او معرفت دد ې په دليل سره چې هر سړي به او چت ځای ته خيژي چې غروب راغلي او که نه دي راغلې .

وقد قالت الامة السوداء لعقبة بن الحارث . يوه توره امه وه عقبه بن حارث ته وايي .

أرضعتك و أرضعت امرأتك . تا ته او ستا بي بي ته ما خپلې شيدې ورکړې دي .

فامره صلى الله عليه وسلم بفراقها وتقليدها فيما اخبرته به من ذلك . دا يې مضمون ذکر کړي امر په فراق نه دي راغلې بلکې نبي عليه السلام ترغيب په فراق ورکړي امر په فراق نه دي راغلې دا خبره چې د يوې ښځې قول ته اعتبار شته او که نشته دا مسئله اختلافي .

نودې وخت کې دې صحابي تقليد د هغې ښځې وکړو او قول د هغې يې بلا حجته قبول کړو :

وقد صرح الائمة بجواز التقليد . لوي امامان د تقليد په جواز فيصلې کوي .

فقال حفص بن غياث سمعت سفيان يقول اذا رأيت الرجل يعمل العمل الذي .

يو سړي وليد عمل کوي هغه چې اختلاف په کې ده .

وانت ترى تحريمه . او ته د هغه کار د تحريم رايه لري .

فلا تنهه . مه يې منع کوه هغه يوې رايه پسې روان دي د هغې مذهب نه يې مه اړوه لکه سمساره مکروه ده جائز ده اختلاف دي يو حنفي ورته مکروهه وايي او شافعي مذهب ورته جائزه وايي .

فلا تنهه . مه يې منع کوه ترې نه هغه په دې مسئله کې مقتداء لري رايه لري هغه رايه نه يې مه اړوه .

وقال محمد بن الحسن الشيباني يجوز للعالم تقليد من هو اعلم منه . عالم لپاره تقليد د اعلم جائز دي .

ولا يجوز له تقليد من هو مثله . دا مجتهد يادوي .

وقد صرح الشافعي بالتقليد فقال في الضبع بعير . حج کې که چا ضبع ښکار کړو نو په هغې کې به يو اوښ ورکوي نو چا ترې تپوس وکړو چې دليل دې څه شي دي وي ويل .

**قلته تقليداً لعمر** . ما د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تقليد كړې دي .

**وقال في مسألة بيع الحيوان بالبراءة من العيوب** . بيع د حيوان نسياً لکه پيسي اوس راکړه زما د ميښي بچي دي زه به يې بيا درکړم احناف يې جائز نه ګڼي او شوافع يې جائز ګڼي . نو دې وايي بيع د حيوان نسياً جائز ده خو په شرط د براءت د عيوبو باندې چا ورته وويل دليل دې څه دي .

**قلته تقليداً لعثمان** . ما د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تقليد په کې کړې دي .

**قال في موضع اخر من كتابه الجديد قلته تقليداً لعطاء** . وايي ما دا د عطاء بن ابي رباح تقليد کړې دي .

**وهذا أبو حنيفة** رَحِمَهُ اللهُ **في مسائل الآبار** . د کوهي په مسئلو کې .

**ليس معه فيها** . ده سره په دې کې نص نشته .

**الا تقليد من تقدمه من التابعين فيها** . لکه مړه کې به څو بوقې له کوهي نه اوباسي وغيره دې کې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د ابراهيم النخعي تقليد کړې دي هغه دا اقوال کړې نو دا دي مجتهدين دي او په خپله تقليد کوي په دې سره د وهابيانو د هغه اقوالو جوابونه هم وشول چې کوم دوي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ نه نقلوي او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دا قول پيش کوي :

**يا يعقوب** . زه يو انسان يمه خطاء کيږمه يو قول کوم صباء ترې نه رجوع کوم زما دا قول پيش کوه په سنت باندې که موافق وه قبلوه يې ګنې ردوه يې دا وهابيانو په خپلو کتابونو کې پيش کړي چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د تقليد رد کړي ، نو وهابيان خو ړانده دي امام صاحب چا ته خبره کوي ، اې وهابي ! په سترګو ړوند شي هغه چا ته دا خبره کوي .

**يا يعقوب** . يعقوب امام ابي يوسف دي امام ابي يوسف مجتهد دي مجتهد باندې تقليد د مجتهد کله په کار وي هغه په خپلو شاګردانو کې مجتهد شاګرد ته دا خبره کوي چې ګوره ته اهل د اجتهاد يې ته زما خبره بې چون چرا مه منه ته لګيا او سه قرآن او سنت نه اخذ وکړه دا مسئله د مجتهد ده مقلد ته يې نه دي ويلي .

او که څوک وايي چې مقلد ته يې دا خبره کړې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ څه د پاسه دولس (۱۲) لاکهه مسائلو استخراج اکړي په نکة الطريفة کې علامه زاهد الکوثري داذکر کړي دي.

دا څه د پاسه دولسو (۱۲) لاکهو مسائلو استخراج امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ دي لپاره کړي چې خلک پرې عمل وکړي او که خلک يې په ديوال اولي دي لپاره يې کړي چې خلک پرې عمل وکړي.

يو مجتهد چې مسئله راوباسي د عمل لپاره يې را اوباسي نو څنګه هغه دا خبره کوي چې امت دې زما په قول عمل نه کوي په ديوال دې اولي تقليد دې زما نه کوي هغلته لفظ د يا يعقوب موجود دي او يعقوب امام ابي يوسف دي او دې د مجتهدينو نه دي او مجتهد د چا تقليد نه شي کولې که تقليد کوي د مجبوريت په وخت کې به يې کوي چې اصل پيدا نه کړي نو د چا اعلم قول پسې به لاړ شي.

وهذا مالك لا يخرج عن عمل اهل المدينة . د مدينې منورې د صحابوو تقليد کوي.

ويصرح في موطئه . اقرار کوي :

بانه أدرك العمل على هذا . وايي دې باندې د مدينې منورې عمل جاري دي.

وهو الذي عليه أهل العلم ببلدنا . زمونږ ښاريه کې علماء پرې قائل دي ځاى په ځاى موطأ کې له دوي نه اخذ کوي نو دا تقليد د اهل بلد دي کنه چې دې يې کوي.

وجاءت الشريعةُ بقبول قول القائف . قائف چې څوک ماهر په قيافه وي شريعت د هغوي د قول د قبول قائل دي کنه بلا حجت يې قول قبليږي د قائف.

والخارص . اهل د تخمين.

والقاسم والمقوم للمتلفاتِ . يو شي هلاک شوې وي د چا نه د هغې قيمت چې يو سړي په تخمين کې لګوي چې ددې به دومره قيمت وي تخميناً.

وغيرها والحاكمين بالمثل في جزاء الصيد . دوه حاكمين چې په جزاء د صيد کې په مثل فيصله کوي قبلوي به يې کنه او که دلائل به ترې غواړي.

وذلك تقليد محض . دا ټول تقليد محض دي ددوي دا خبرې بلا حجته قبليږي.

**واجمعت الامة** . اجماع کړي امت .

**على قبول قول المترجم والرسول** . د استاذې او د مترجم قول قبلوي بلا حجته .

مثلاً يو کافر مجاهدينو ونيوه او جيل ته يې واچوه نو درې ورځې خو به يې ساتي که کلمه ووايي نو مجاهدينو چې و ساته هغلته له هغه سره مترجم دي حاکم ته مترجم پيش کيږي چې د ايمان قبول کړو هغه ايمان په انګلش کې راوړي دي او حاکم په انګلش نه پوهيږي نو د مترجم قول ته اعتبار شته کنه په دې عظيمه مسئله کې چې دا اوس وژلې نه شي نو دا قول د مترجم چې حاکم قبلوي بلا حجته به يې قبلوي دلائل خو به نه غواړي کنه نو د مترجم قول ته اعتبار دي او دا تقليد د مترجم دي .

دا رنګې استاذي يو څوک بل ځای ته استاذي ليږي هغلته چې استاذې لاړ ددې سړي پيغام هلته رسوي بلا حجته به د هغه قول قبلوي .

**وان اختلفوا في جواز الاكتفاء بواحد** . اګر که اختلاف کړې به جواز د اکتفاء واحد کې چې يو په کار دي که دوه .

**وذلك تقليد محض لهؤلاء . واجمعوا على جواز شراء اللحمان** . دا رنګې اجماع کړي علماء په جواز د اخيستو د غوښو کې بلا حجته قصاب ته چې ورشي نو ته به دلائل لټوي چې دا غوښه د څه شي ده هغه به وايي د ګډ ده داد څه شي ده داد چيلي ده داد څه شي ده داد غوا ده .

اوس دلته څه شواهد څوک لري چې داد همد غو مذکورو شيانو ده او په څه شکل يې حلاله شوې اوس به د هر قصاب لپاره به ګواهان ولاړ وي مشتري به راځي پوښتنه به کوي چې دا پاکه ده حلاله ده قصاب به وايي هاو مشتري به ورته وايي دليل پيش کړه نو قصاب به دليل يا ګواهان پيش کوي ، نه چې قصاب ووېل حلاله ده حکم د دار کيده تقليد يې کوه دا ستا لپاره جائزه ده چې وي خوري .

**والثياب والاطعمة وغيرها من غير سؤال عن اسباب حلها** . اسبابو د حل ته د سوال ضرورت نشته .

**وتحريمها اكتفاء بتقليد اربابها** . د مالکانو تقليد دي دلته .

**ولو كلف الناس كلهم الاجتهاد** . که دا خلک ټول په اجتهاد او طلب د دليل مکلف شي .

وان يكونوا علماء فضلاء لضاعت مصالح العباد وتعطلت الصنائع والمتاجر . هر څه به ختم شي .

ونقول لمن احتج على ابطاله . هغه څوک چې د تقليد په ابطال دليل پيش کوي مونږ هغه ته وايو .

كل حجة اثرية ذكرتها فانت مقلد لحملتها ورواتها . ته د تقليد په رد کې څه پيش کوي چې هر څه ته مونږ ته پيش کوي حديث پيش کوي نو ته په هغې کې مقلد د حامل د دې حديث يې او مقلد راوي د دې حديث يې .

اذ لم يقم دليل قطعي على صدقهم فليس بيدك الا تقليد الراوي . که ته يو حديث پيش کوي نو ته مقلد په دې کې د دغو رُواتو يې تا ته چا ويلي چې داد محمد مصطفى ﷺ قول دې دې راوي ويلي هغه واحد دې دليل پرې څه ده نشته بيا دې تقليد د راوي وکړو يعنې کوم څوک چې حديث پيش کوي هغوي مقلدين د رُواتو دي .

وهؤلاء اصحاب رسول الله ﷺ فتحوا البلاد . ښارونه يې فتحه کړه .

وكان الحديث العهد بالاسلام . خلک نوي تازه دم مسلمانان وه .

يسألهم . خلک به راتلل د صحابه کرامو نه به يې پوښتنې کولې .

فيفتونه . دوي فتوى ورکولې .

ولا يقولون له عليك ان تطلب معرفة الحق في هذه الفتوى بالدليل . يو صحابي هم چا ته دا نه دي ويلي چې زمونږ خبرې مه مني بلکې قرآن او سنت کې دليل لټوه .

ولا يعرف ذلك عن احد منهم البتة . يو صحابي نه هم دا معروفه نه ده چې هغه نه چا استفتاء کړې هغه جواب ورته دا کړي چې رد کتاب الله او سنت رسول ته وکړه .

وقد قال الشافعي في الصحابة رأيهم لنا خير من رأينا لانفسنا . دغه شان د امام ابو حنيفه رحمه الله نه هم منقول ده .

ونحن نقول ونصدق ان رأي الشافعي . وايي مونږ وايو چې رايه د امام شافعي دا مصنف شافعي مذهب دي .

والأئمة معه لنا خير من رأينا لانفسنا . زمونږ د رای نه مونږ ته دا غوره ده .

وقد جعل الله سبحانه في فطر العباد تقليد المتعلمين للأستاذين والمعلمين . دغه شان خدای تعالی په طبعیت د عبادو کې اچولې تقلید د شاګردانو استاذانو لره هر شاګرد د استاذ مقلد دي .

ولا تقوم مصالح الخلق الا بهذا . مصلح د مخلوقاتو په دغې قائم دي .

وذلك عام في كل علم وصناعة . په هر علم او صنعت کې دا مسئله روانه وه .

وقد فاوت الله سبحانه بين قوي الاذهان . خدای تعالی ذهنونه یو شان نه دي پیدا کړي دې کې فرق دي .

كما فاوت بين الأبدان فلا يحسن في حكمته وعدله ورحمته ان يفرض على جميع خلقه معرفة الحق بدليله .

دا هیڅ حسن نه ده د خدای جَلَّجَلَالُهُ د عقل موافق نه ده د خدای جَلَّجَلَالُهُ د رحمت موافقه نه ده چې ګنې خدای تعالی دي په ټول مخلوق باندې معرفت د حق بالدلیل فرض کړي په هر چا یې دا نه دي فرض کړي .

والجواب عن معارضه في جميع مسائل الدين دقيقها وجليلها . دا یې پرې نه دي فرض کړې چې هر څوک به په مسائلو د دین کې دقیق او جلیل مسائلو کې معارضې لټوي یا به معارضه کې چا پیش کړې وي او د هغې نه به جواب لټوي .

لوكان كذلك لتساوت اقدام الخلائق في كونهم علماء . که داسې وایې ټول به یو شان واي .

بل جعل سبحانه وتعالى هذا عالماً وهذا متعلماً وهذا متبعاً للعالم . چې مقلد ورته وایي .

مؤتماً به . چې دا په منزله د مأموم دي .

مع الامام والتابع مع المتبوع واين حرم الله تعالى على الجاهل ان يكون متبعاً للعالم مؤتماً به مقلدا له يسير بسيره وينزل بنزوله .

کوم ځای کې خدای تعالی په جاهل باندې حرام کړې دي **متبعاً للعالم ومؤتماً** بـه **مقلد له**، چې د هغه په مزل رفتار وکړي هغوي پسې لاړ شي.

**وليس بين الحاكم الا تقليد الشاهد**. دغه شان حاکمان چې فيصلې کوي هغه سره اختيار نشته څه دي ورسره مګر تقليد د شاهد دي.

**وكذلك ليس بين العامي الا تقليد العالم**.

**فما الذي سوغ لك تقليد الراوي والشاهد**. څه دليل دي ستا لپاره چې تقليد د رُوات الحديث روا دي او تقليد د حاکم او شاهد روا دي.

**ومنعنا من تقليد العالم**. او مونږ يې د فقهاو د تقليد نه منع کړې يو نو که دې کې کوم چې ما تاسو ته بيان کړو لږ سوچ وکړي نو خپله به تاسو ته انصاف او اصلي فيصله ذهن ته راځي چې هيڅ ګنجائش نشته چې سړي تقليد نه اوځي.

او دا کل عوام په يو مثابت کې نه دي ددې خبرې بطلان خو عقلاً بدهتاً او ضرورتاً دي چې سړي دا خبره کوي چې هر امي سړي به طالب د دليل وي يو عالم نه به دليل غواړي نو هغه په دليل کله پوهيږي.

او بل که نحوي ته لاړې شي نو تاسو د نحوي قواعد خپله نه شي پيدا کولې په هغې کې روان يې ائمو پسې امام کسائي پسې ځي سيبويه پسې ځي وغيره همدغسې صرفو کې ائمه دي د هغو اقوال را اخلي په تائيد اتو کې همدا شان علم معاني بديع بيان کې د ائمو اقوالو پسې ځي.

همدغه شان اصول حديثو ته چې لاړ شي دا حديث صحيح دي لذاته دي لغيره دي حسن لذاته دي لغيره دې منقطع دي معضل دي مقطوع دي مسند دي مرفوع دي وغيره دا کوم اقسام د حديثو چې مونږ بيان کړې وه دا د صحابوو زمانه کې چيرته وه.

د تابعينو زمانه کې هم دغه اصطلاحات دومره نه وه دا روسته د امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ په زمانه کې پيدا شول او د هغې نه بعد شائع شول، او دغه اقسام د حديثو ټول مني تقليد په کې کوي.

دغه شان سبعه قرآات چې دې په هغې کې ټول خلک مقلدين دي څوک هم چون چرا په

کې نه کوي چې ددې امام قراءت منم ددې نه منم کله دوي دا خبره کوي چې څلور مذاهب شول دا ټول دلته ولې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ پسې روان دي نو مونږ هغې نه جواب کې دا وایو چې سبعه قراءت خو متواتر دي او ټول حق دي دا قراءت معروفه حفص دي دا عرب عجم په دې ولې راغونډ شوې.

او قرآت حقه متواتره سبعه دي او په عربو کې هم دا تلاوت دي او دلته هم دا تلاوت دي او په ټوله دنیا کې همدا تلاوت دي نو ولې خلک په دې یو قراءت پسې ځي نو چې څوک دا اعتراض امام صاحب باندې کوي نو دا اعتراض به بیا په قراءتو سبعه باندې راشي خلک دې بیا ټول قرآتو نه کوي نو دغه شان دا سبعه قراءت او په هغې کې په یوه قرآت راغونډیدل د قوم او د خلکو دغې ته ترجیح ورکول او دوي هم جائز ګڼي دا قاریان یې چې تلاوت کوي.

په همدغه قراءت حفص لګیاوي که ورته وویل شي چې دا قراءت ما ته یو صحابي نه ثابت کړه مستند حدیث سره نو نه شي ثابتولې او که دوي وایي چې دا په تواتر راغلې په تواتر خو هغه نورشته قراءت هم راغلي کنه هغه ولې نه کوي چې دایو مو را ټینګ کړي.

اوس دا فرق چې حاکم به د ګواه تقلید کوي او خاوند به په راتلو د بي بي کې د هغه بلې زنانه تقلید کوي مشتري د لحم به د قصاب تقلید کوي متبع د نحوې به د امام د نحوې تقلید کوي د صرفو معانیو اصولو وغیره به کوي او چې فقه ته راشي نو تقلید به شرک وي دا فرق چا کړي چې فقهي جزئیاتو کې تقلید کول حرام دي.

فتاوی ابن تیمیه جلد ۲ صفحه ۲۰۳ چا سوال کړې دي چې امامانو ولې په تقلید باندې رد کړې دي امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ کړي چې زما قول د قرآن او حدیث مخالف وه رد یې کړې په دیوال یې اولی امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ رد پرې کړې دي نو د دې جواب کوي:

منع الائمة عن التقليد انما هو في حق القادر على اخذ الاحكام عن الادلة.

امامانو چې کوم څوک د تقلید نه منعه کړې دي دا یې هغه شاګردان منع کړې دي چې هغه قادر دي په اخذ د احکامو د دلائلو نه هغه څوک چې په اخذ د قرآن او سنت قادر هغه سړي یې منعه کړې دي عام خلک یې نه دي منع کړي.

باقي خپله د ائمو نه ځای په ځای تقلیدات ثابت دي لکه د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ باره کې اللجنة صفحه ۴۲ کې د اهل حدیث تصنیف دي لیکي:

**كان ابو حنيفة الزمهم بمذهب ابراهيم** . د ابراهيم النخعي مذهب يې په ځان لازم كړې وه دې په خپله ديو مجتهد تقليد كوي .

دغه شان امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په مواضعو د حج كې چې ضبع كله څوك قتل كړي نو مقابل كې به يې اوبن حلالوي .

**قلته تقليداً العطاء** . دا ما د عطاء تقليد كړې .

دارنګې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ تاريخ بغداد جلد ۲ صفحه ٦٧ كې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ سائل ته وايي :

**ان لم يصح فيه حديث ففقيه قول الشافعي و حجته أثبت فيه** .

چې ما سره حديث پيدا نه شي په هغې كې ما ته د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ دليل دي حجة الله البالغه جلد ۱ صفحه ۱۵۴ كې ذكر كوي چې ابن حزم ظاهري په تقليد څومره ردود كړې دي او د ائموو اقوال يې را اخيستي :

**ان تلك الاقوال في حق المجتهد لا المقلد** . دا د مجتهد متعلق دي چې اخذ دليل نه به مجتهد كوي مقلد يې نه شي كولې .

بعضې خلك وايي چې دې زمانه كې بل مذهب ولې نه شي پيدا كيدلې اجماع دې باندې راغلې ده لا پيدا شوې نه دي څوك دي د اجتهاد دعوه وكړي مونږ به خبرې ورسره پرې وكړو او يوه جزيه دې ثابت كړي چې پته ولږي .

مقدمه ابن خلدون صفحه ۴۴۸ كې وايي :

**و مدعي الاجتهاد لهذا العهد مردود منكوص على عقبه** . چا چې دعوه د اجتهاد وكړه په دې زمانه كې قول يې مردود دي په پوندو د هغه باندې يې كړي .

**مهجور تقليده** . تقليد يې ترك دي .

**وقد صار اهل الاسلام اليوم على تقليد هؤلاء الائمة الاربعة** . ټول مسلمان د ائموو اربعوو په تقليد باندې سره اجماع كړې ده .

شاه ولي الله رَحِمَهُ اللَّهُ په الانصاف صفحه ٦٣ كې ليكلي :

**وبالجملة فالمذهب للمجتهدين سر الهمه الله تعالی العلماء** . ددې مجتهدینو مذهب کې دننه کیدل دا یو رازوه خدای تعالی علماو ته زړه کې واچوه .

**وجمعهم علیه** . خدای تعالی پرې راغونډ کړل .

**من حیث یشعرون او لا یشعرون** .

جلال الدین سیوطي رَحِمَهُ اللهُ په حاوي جلد ۱ صفحه ۲۹۵ کې لیکلي دي :

**ولا یجوز لغیر المجتهد الخروج من المذهب المعین** . کوم سړي چې مجتهد نه وي عالم په حدیثو په فقه نه وي د استخراج په طرزونو نه وي ده ته جائز نه دي چې یو مذهب کې دننه دي د هغې نه اوځي .

امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ په جلد ۱ صفحه ۱۱۸ لیکلي :

**العلماء الفقهاء هم اعلم بمعاني الحدیث** . علماء فقهاء د حدیثو په معنی ښه پوهیږي حدیث هغوي اخذ کوي هغوي ترې نه معنی را اوباسي .

دارنګې ترمذي جلد ۱ صفحه ۱۴۱ کې لیکلي د عبدالله بن مبارک صاحب رایه پیش کوي د طلاق کلما موضوع چیرې چې دا څنګه دي هغه ځای کې عبدالله بن مبارک وایي چې کله د یو سړي رایه دا وي چې طلاق کلما واقع کیږي یعنې په دغه مذهب وي چې دا مذهب د عبدالله بن مسعود دي د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دي او په دې څوک روان دي بله ورځ دې خپله په طلاق کلما کې واقع شي دده لپاره بل مذهب ته تلل څنګه دي نو هغه وایي :

**لا یجوز الخروج** . دې وخت کې دده لپاره خروج جائز نه دي داد هواء اتباع راځي داد خپل خواهش تابع دي د دین تابع نه ذي .

که څوک اعتراض وکړي په مقلدینو چې تاسو اربعة مذاهب ته حق وایي او حق په خلاف د معرض کې واحد وي نو څلور خو حق کیږي نه دا چې مخالف راغلل یو به حق وي نور به باطل وي .

ددې جواب الفقیه والمتفقه للخطیب البغدادي جلد ۲ صفحه ۱۱۴ کې کړې دي په دغه صفحه باندې ذکر کوي او اختلاف بیانوي چې حق په اختلاف کې معرض واحد دي که متعدد نو همدغې طرف ته رجوع کوي چې کله اختلاف د اهل حق راشي د اهل زیغ سره د

هغې نه تعبير په اصطلاح د اهل لغتو باندې په اختلاف نه کيږي بلکې په خلاف کيږي نو دغه وخت کې حق واحد وي .

چې کله ته د معتزلي ، شيعه ، وهابي ، اشاعتي خارجي په مقابله کې تعارض کې راشي نو حق په خلاف د معرض کې واحد دي حق به يو وي که ته په حق وي هغوي په باطله دې او که هغوي په حق وي ته په باطله يې .

او يو اختلاف دي اختلاف د اهل حقو د اهل حقو سره وي خلک په معرض د اختلاف کې متعدد وي دلته دا ائمه اربعه په خپلو کې مخالفين نه دي مختلفين دي دوي يو بل سره خلاف نه دي کړي اختلاف يې کړي او اختلاف د علماء رحمت دي او رحمت په بې ديني کې نه وي رحمت په حق کې وي .

نو دا دواړه جانبه په حق باندې دي هر جانب پسې چې څوک لاړل حق ته ورسيدل .

## المبحث الثالث : في استدلالات المنكرين :

يو څو نصوص زه ذکر کوم چې دوي په خپلو رسائلو کې دې نه استدلال کړي دا دوه اياتونه چې مضمون کې سره قريب دي سروة بقرة آيت : ۱۷۰ او سورة لقمان آيت ۲۱ چې ددوي ټولو رسائلو کې دا استدلالات موجود دي :

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ ﴾ .

دوي وهابيان داسې وايي چې کله مقلدينو ته وويل شي :

﴿ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ﴾ . مونږ اتباع کوو چې مونده کړي مونږ پلاران خپل په هغې .

﴿ أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾ .

## دويم دليل :

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴾ .

دا دليل چې کله دوي پيش کړي دې نه اول څه طريقه باندې دوي ته دا وايه چې :

ما سبب النزول هذه الايات . دا ايات ولې نازل شو کله نازل شو د چا باره کې نازل شو مستدل هغه دي ته سائل يې ته به ترې دا تپوس کوي ضرور به دې وايي په حق د مشرکينو مکه نازل شوې يا عامو مشرکينو باره کې نازل دي .

بخاري شريف جلد ۲ صفحه ۱۰۲۴ د عبد الله ابن عمرو العاص حديث پيش کړو :

ان الحرورية من الخوارج هم شرار خلق الله لانهم انطلقوا الى ايات نزلت في الكفار فجعلوها على المسلمين .

وكان ابن عمر يراهم شرار خلق الله وقال انهم انطلقوا الى ايات نزلت في الكفار فجعلوها على المؤمنين . دا آخري عبارت د بخاري شريف دي .

خوارج او حروريه شرار خلق الله دي هغه اياتونه چې نازل په حق د مشرکينو کې دي چسپانوي يې په مؤمنينو باندې وايي چې دا ايات نازل دي په حق د مشرکينو کې نو که دا څوک په مقلدينو چسپانوي بې انصافي ده او چې چسپانوي په فتوی د عبد الله بن عمرو بن العاص د امام بخاري د دغې صفحې سره د خوارجو نه يې او خوارج كلاب النار دي .

په لنډه طريقه مباحثه داسې وکړه چې دليل يې څنګه پيش کړو :

واذا قيل لهم . کله چې وويل شي دوي ته چا ته تا سره خو يې بحث په حنفيت دي کله چې وويلې شي لهم ، دې احنافو ته نو احناف دغه وخت کې وه چې دوي ته وويلې شي کله چې ايات نازليده دا څوک يادوي چا ته وويلې شي مشرکينو مکه ته نو چې سوچ وشي انصاف وشي نو احناف او مشرکين مکه يو شان دي چې هغه په دوي چسپانوي داسې معاندين دي .

زمونږ چې کوم استدلال وه : يا ايها الذين آمنوا ، او دوي چې استدلال کوي د کفارو باره کې مشرکانو کې هغې نه استدلال کوي .

**دويم جواب :** ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا﴾ دلته اتباع راغله تپوس، ترې وکړي چې د اتباع او تقليد مينځ کې فرق شته او که نه ؟ دوي د فرق قائل دي او په رسائلو کې فرق ښکاره دي دوي وايي اتباع جائزه ده خو تقليد ناجائزه دي وايي دا خو رد په اتباع باندې دي او ته

متبع یې نه په تقلید باندې په تقلید باندې رد پیدا کړي داسې پیدا کړه :

اذا قیل لهم اتبعوا ما انزل الله قالوا بل نقلد اباؤنا . تاسو خو د اتباع او تقلید مینځ کې د فرق قائل یاستي .

**دریم جواب : بل نتبع ما الفینا** . ضم د اتباع د اباء راغي د لته ضم په اتباع مطلق دي که اتباع في الشرکیات باندې دي که وایي چې ضم په اتباع مطلقه باندې دي مطلق اتباع د اباء ناروا ده . اوس دې ایات ته ګوره .

﴿وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ﴾ .

چا چې اتباع د صحابوو وکړه باحسان اتباع د صحابوو باحسان سبب د رضاء د باري تعالی ده . دارنګې :

﴿وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ﴾ تابعداري کوه د لارې د هغه چا چې ما ته راجع وي که پلار دې وي خدای تعالی ته راجع وي ته به یې تابعداري کوي .

دارنګې یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایي :

﴿وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَآئِي﴾ د پلار د عقیدې تابع یمه چې پلار یې په سمه باندې وه اتباع یې وکړه .

دارنګې : ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ﴾ . بچي د پلار تابعداري په ایمان کې وکړي .

﴿أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ دا څلور نصوص ددې دلیل دي چې کشران د مشرانو اتباع په ایمانیاتو کې کولې شي اوس دلته د اتباع ضم چې تاسو کوي دا ضم د اتباع في الشرکیات دي .

که في الایمانیات دي که مطلقاً دي ؟ که وایي چې دا اتباع في الشرکیات منعه شوې ده نو خدای مو ړانده کړه لکه ړانده چې یاستي چې مونږ اتباع د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ في الشرکیات کړې ده که في الشرعیات مو کړې ده لږ سوچ خو وکړي .

که ضم د اتباع في الشرکیات رد شوې یې نو مونږ خو متبع په شرک کې نه یو او نه هغه

مشرک وه او مونږ پلارانو پسې په شرک کې نه يو روان او نه زمونږ پلاران مشرکان وه.
څلورمه طريقه د جواب د غه ايات وروسته څپله دليل دي ؛
﴿أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ﴾ د دې څه معنى ده.
اى يتبعونهم. آيا دا مشركين اتباع د پلارانو كوي.
اگر كه وه پلاران يې چې نه يې عقل لرلو او نه په هدايت وه تاسو گريوان كې سوچ وكړي.
د لايعقلون او لا يهتدون په ائمه يې اربعوو كې په چا باندې ستاسو زړه ورځي چې دا اطلاق پرې وكړي. د منافقت د وجهې نه خلكو ته وايي چې زه ورته رحمة الله عليه وايمه.
بل دليل چې دوي پيش كوي ؛
﴿إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ﴾
دا ايات په حق د يهوديانو كې نازل شوې دوي په رسائلو كې ليكلي او استدلال كې پيش كوي هغه وخت را ياد كړي بيزاري به ښكاره كړي اتبعوا متبوعين د هغې كسانو نه اتبعوا تابعين او وه به گوري په شريكه عذاب قطعه به شي په دوي باندې اسباب د قربت او خپلولي.
﴿وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا﴾. وايي به هغه كسان چې تابعدار دي.
﴿لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً﴾. كه رجعت دنيا ته واي.
﴿فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ﴾. مونږ به بيزاري ښكاره كړې وه دوي نه.
﴿كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ﴾ همدارنگې الله پاک به ښايي دوي لره اعمال د دوي.
﴿حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ﴾ وي به پښيماني په دوي باندې.
﴿وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ﴾ (البقرة آيت : ۱۶۶-۱۶۷).
دې ځاى ته چې دوي راورسيږي په ترجمو كې نو خواږه شي په كې دلته څه معنى كوي هغه وخت چې بيزاري به ښكاره كړي هغه كسان أُتبعوا چې پيران دي د هغې كسانو نه اتبعوا

چې مریدان دي، پیران به د مریدانو نه بیزاره شي دوي صفا الفاظو کې دا خبرې کوي هغه وخت کې چې بیزاري به ښکاره کړي متبوعان چې امامان دي من الذین اتبعوا چې مقلدین دي دوي نه به بیزاره شي دې وخت کې به دا مقلدین وایي.

وقال الذین اتبعوا. تابعدار مریدان او مقلدین به وایي کاشکي دنیا ته تللې واي چې مونږ هم بیزاري ښکاره کړې وای له ائمه او پیرانو نه لکه دوي چې مونږ نه ښکاره کړه.

نو ورته و وایي جاهله دا مشرکین تابعدار د مشرکینو متبوعانو باره کې ده.

هر چې متقیان او اولیاء دي د هغوي چې کوم تابعداران دي د دغه مرید چې د متقي ولي سره دوستي ده دا دوستي هلته هم نه ختمیږي او کار ورکوي.

دلیل ته ګوري سورت الزخرف آیت: ۶۷:

﴿الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ﴾ دوستان به په دغه ورځ.

﴿بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ بعضې به د بعضو دشمنان وي.

﴿إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾ د متقیانو دوستي چې کومه ده هلته به دشمني نه وي.

﴿أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ○ الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ﴾

نو دا تقوی دار اولیاء دي نو د دغو ایاتونو نچوړ دا دی چې د اولیاء سره کوم مریدین متعلقین دي د هغوي دوستي هلته هم نه ختمیږي هلته به هم پیر خپل مرید پسې ګرځیږي او امام به خپل مقلد پسې ګرځیږي چا چې د هغه اتباع کړې وه پسې به وي نو مونږ د دغه متقیانو اتباع کړې او د متقیانو مریدان یو د هغوي باره کې دا ایات راغلي ﴿إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾ هغوي دوستي هلته هم نه ختمیږي هلته هم کار ورکوي.

بل د سورت اعراف دي چې دده ایات نه دلیل پیش کوي:

﴿اتَّبِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ﴾ من دون الله د اولیاء اتباع مه کوي نو ورته وایه چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الله دي که من دون الله دې به وایي من دون الله دي نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اتباع کوي که نه یې کوي نو هغه به وایي چې هغه خو د بل ځای نه ثابته ده د کوم ځای نه اطیعوا الله و اطیعوا الرسول نو روند شي لږ مخکې هم لاړ شه و اولي الامر منکم

چې په دې ايات يې نه ختموي بل ځای نه استدلال کوي نو بل ځای کې خو اولی الامر راغي .
دارنګې سورة آل عمران آيت نمبر ۶۴ دليل کې پيش کوي خپلو کتابونو کې ټول ايات نه ليکي او نه يې پيش کوي :
﴿تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا﴾ نو ددې مخکني حصه پريږدي نه يې وايي آيت ته ګوري:
﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَاباً مِّن دُونِ اللّهِ﴾
ددې ځای نه دوي استدلال کوي : ﴿وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَاباً مِّن دُونِ اللّهِ﴾ ددې معنی داده چې مونږ به بعضې بعضو لره شريکان مع الله نه ګڼو رب دلته په معنی د شريک مع الله دي دا به مونږ شريکان مع الله نه ګڼو .
دوي وايي چې دلته رب په معنی د مقلد متبع او مُطاع سره دي بعضې به بعضو لره مطاعان نه ګڼو تابعداري به يې نه کوو .نو رب دلته په معنی د شريک مع الله دي او رب دلته په معنی د مطاع مه اخلي او که دغه معنی واخلي نو په سورة آل عمران پاره ۳ آيت: ۸۰ کې ايات ته ګوري:
﴿وَلاَ يَأْمُرَكُمْ﴾ امر نه کوي دا پيغمبر چې چا ته خدای کتاب حکم او نبوت ورکړي امر نه کوي تاسو ته ددې خبرې : ﴿أَن تَتَّخِذُواْ﴾ چې تاسو ونيسي : ﴿الْمَلاَئِكَةَ﴾ ملائکو لره او يا تاسو ونيسي : ﴿وَالنِّبِيِّيْنَ﴾ پيغمبران ﴿أَرْبَاباً﴾ نو اوس څه معنی کوي دا معنی کولې شي چې يو پيغمبر چا ته امر نه کوي چې تاسو پيغمبران مطاعان ونيسي يعنې د پيغمبر تابعداري وکړي ولې نه کوي هر پيغمبر خلکو ته ويلي دي چې د پيغمبرانو تابعداري وکړي اوس دلته د ارباب معنی شريک اخلي او که نه يې اخلي يعنې يو پيغمبر چا ته نه دي ويلي چې تاسو ملائک او پيغمبران شريکان مع الله وګڼي .
که ارباب ته په معنی د مُطاع سره کړي نو بيا معنی دا شوه چې يو پيغمبر هم چا ته نه دي ويلي چې تاسو د پيغمبرانو تابعداري وکړي ولې يې نه دي ويلي هر پيغمبر خپل قوم ته ويلي دي چې تاسو د پيغمبرانو تابعداري وکړي د هغوي د عقيدې نو دې کې به تاسو د آل عمران آيت ۸۰ پيش کوي چې ارباب په معنی د شريک مع الله دي دې مقام کې نه په معنی د مطاع

سره نو جواب دا شو چې ارباب په معنی د شریک مع الله دي د مطاع مقلد او متبع سره نه دي .

او که څوک دلته هغه حدیث پیش کړي چې چا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وویل چې مونږ خو اربابان نه دي نیولې وایي ولې چې هغوي حلالول تاسو حلالول هغوي حرامول تاسو حرامول وایي چې هاو وایي دغه رب من دون الله دي .

ګوري زمونږ ټول فقهاء او اصول په دې متفق دي چې د ائمو په قول باندې مونږ تحليل او تحريم ته جائز نه وایو حلال یا حرام چا ته وایي : **ماثبت بدليلٍ قطعيٍ** ، او د فقيه قول خو ظني دي هغه کله چا قطعي دليل ګرځولی دي نو زمونږ اصول دې تقاضا کوي چې حرام مونږ په نص قرآن په حدیث متواتر او په اجماع متواتره باندې ثابتوو .

دیو چا په قول مونږ حرام نه ثابتوو دارنګې دليل د سورة نساء آیت ٦٥ پیش کوي :

﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾ قسم په الله دوي به ایمان نه راوړي ترڅو چې فیصله کن کړي تا لره په هغه مسئله کې چې مختلف ده په مینځ د دوي کې .

﴿ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا﴾ دوي به نه پیدا کوي په نفسونو خپلو کې تنګي د هغه څه نه .

﴿قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ چې تا پرې فیصله کړې ګردن نهاد به وي ټول ستا لره په ګردن نهادي سره . دا ددوي په رسائلو کې مذکور دي وایي دوي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مقابله کې د ائمو اقوال مقدم کړي دي .

او دوي ددې ایات معنی دا کوي : ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دوي مؤمنان نه دي دا معنی غلطه ده ځکه لا دلته ناهیه نه دي بلکې نافیه دي د لا نافیه د ناهیه سره عظیم فرق په لفظ کې دادی چې ناهیه په لفظ کې عمل کوي سقوط د نون راولي او نافیه په لفظ کې عمل نه کوي .

﴿لَا يُؤْمِنُونَ﴾ بیا په معنی کې فرق دادی چې لا ناهیه نهي حالي راولي لا نافیه نفي استقبالي راولي .

نو دلته لا ناهیه نه دي نافیه دي معنی داده ؛ ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دوي به ایمان نه راوړي داسې مه وایې چې دوي مؤمنان نه دي که وه دې وویل چې دوي مؤمنان نه دي هغه د لایؤمنوا معنی ده د لایؤمنون معنی نه ده د نفي او نهي فرق باید وشي لایؤمنون دوي به

ايمان نه راوړي د ايمان په دائره کې به نه داخليږي چې په مسئله مختلف کې تا فيصله کن نه گڼي د يو سړي دا عقيده ده چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فيصلې به په اختلافي مسئلو کې نه منم او دې د ايمان په دائره کې راځي نو نه دې راځي ودې وځي ترې نه چې د ايمان دائره کې داخليږي نو مخکې نه به تسليموي اقوال د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ.

نو الحمد لله اربعة ائمو و مقلدينو چې څومره تسليم د اقوال الرسول کړې دي نو هغومره دوي کله کړې دي دوي ته خو په توسل کې مونږ ۱۹ احاديث پيش کوو د هغې مقابله کې د خپلې رايې او شيخ اتباع کوي يو دليل هم نه لري په نفي د توسل همد غسې په تبرک او کرامت کې په نفي يو دليل هم نه لري .دارنګې دوه (۲) احاديثو نه دوي استدلال کوي خو استدلال يې تام نه دي يو د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فتوى ده او بله د معاذ بن جبل فتوى ده دلته دوي د تقليد او اتباع په مينځ کې د فرق قائل دي او چې چيلنج ورکړي چې په نفي د تقليد کې يو ضعيف جديث هم پيش کړي نه شي خودلې ۰

نو دوي بيا لاړ شي د صحابوو فتوى ته حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي که عالم په سمه لاره وي نو تقليد يې مه کوي دا خبره دوي ډيره په زور سره پيش کوي نو دوي ته وايي چې خطيب بغدادي فقيه والمتفقه کې وايي منکر د تقليد چې څومره شواهد پيش کوي نو تقليد به کوي اہل حدیث کے دو اصول کتاب اللہ اور سنت رسول تقليد ته شرک وايمه او ثابتومه يې په قول د معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره نو دا تقليد نه دي نو دده قول قران دي که سنت دي او دا خو مو په هره پاڼره کې ليکلي وهذا موقوف لا حجة في الموقوفات چې د صحابي فتوى دليل نه ده نو بيا دلته څنګه دليل شوه ۰

نو داد سنن الكبرى للبيهقي حواله ما تاسو ته را اخيستي د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول کې خو دوي محض هغه مخکې وروسته عبارت ترې پټوي او خلک دوکه کوي سنن البيهقي جلد ۲ صفحه ۸ عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي :

لا تقلدوا دينكم الرجال. په دين خپل کې د رجالو تقليد مه کوي نو دوي دومره تو ته عبارت په خپلو رسالو کې ليکي او نور نه وايي مخکې عبارت ته گوري : فان ابيتم فبالاموات لا بالاحياء . که منع شوې د تقليد نه او ضرورت پيدا شو کولو مو د مړو وکړي خو

د ژوندو مه کوي نو دا اوس په تقلید رد دي که اثبات دي .

تاسو وهابیانو ته وایي چې ژوندو پسې مه ځي مړو پسې لاړ شي ځکه هغوي د فتنو نه محفوظ دي او ژوندي خو تاسو وهابیانو غوندې په یوه لنکروزر ایمان خرڅوي اصل جواب دادی چې دوهابیانو په نزد موقوفات دلیل نه دي مونږ ته یې ولې پیش کوي تاسو تقلید ته شرک او حرام وایي د ابن مسعود رضي الله عنه په فتوی حرام هم ثابتیږي داد چا اصل دي .

او تحقیقي جواب دادی چې مراد د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د دغې لا تقلدوا نه تقلید في العقائد نه في الشرعیات دي دلیل وربانډې دا حدیث دي سنن الکبری د بیهقي جلد ۱۰ صفحه ۱۱۶ کې ابن مسعود رضي الله عنه فرمایي :

**ألا لا يقلدن رجل رجلاً دينه** . یو سړي دې د بل سړي په دین کې مقلد کیږي نه .

**فان امن** . چې هغه مؤمن وي . امَن . دي دي مؤمن وي .

**وان كفر** . چې هغه کافر وي دې دي کافر وي دا عقیده یادوي که شرعي مسائل دا دلیل ددې ده چې دا عقیده یادوي .

**فان كان مقلدا لا محالة** . که خامخا تقلید کوي .

**فليقلد الميت ويترك الحي فان الحي لا تؤمن عليه الفتنة** . ژوندي پسې مه ځه بیا مړي پسې لاړ شه .

او هرچې د معاذ بن جبل رضي الله عنه قول دي الزهد لوکیع جلد ۱ صفحه ۳۵ کې را اخیستې دي حضرت معاذ رضي الله عنه فرمایي : **كيف انتم عند ثلاث** . درې کارونه چې راشي څه حال به ستاسو وي .

**دنيا تقطع رقابكم** . داسې دنیا به راشي څټونه به درمات کړي .

**وزلة عالم** . بل د عالم زلت دي چې عالم خطاء شي .

**وجدال منافق بالقرآن** ؟ منافق به په قران کریم مناظره کوي وي به منافق پیش کوي به قرآن کریم .

**فسكتوا** . خلک غلي شول .

**فقال معاذ بن جبل** . معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل : **اما دنیا تقطع رقابکم** . هر چې دنیا ده ځټونه به درمات کړي .

**فمن جعل الله غناه في قلبه فقد هُدِيَ** . چا ته چې خدای تعالی په زړه کې غنا واچوله .

**فقد هُدِيَ ومن لا فليس بنافعته دنياه واما زلة عالم فان اهتدى فلا تقلدوه دينكم** . که په سمه وه نو په دین کې تقلید مه کوي .

ددې نه جواب یو خو مخکې تیر شو چې موقوف خو ستاسو په نزد دلیل نه دي مونږ ته یې ولې پیش کوي خو تحقیقي جواب دادي چې دې دلته دین یادوي او اطلاق د دین یواځې په فروعي مسائلو نه دي دا په عقیده باندې دي په عقیده کې د یو شخص تقلید مه کوه وروسته عبارت کې خپله اشاره ورته کوي :

**فما عرفتم فتمسكوا به** . په دین چې پوه شوي تمسک پرې وکړي .

**وما اشكل عليكم فكلوه الى عالمه** . که تاسو باندې اشکال راغې عالم ته یې وسپاري داد څه دلیل دي چې عالم لري نو د عالم اتباع کوه بیرته .

اعلام الموقعین جلد ۱ صفحه ۱۴ د مرضِ موت نه مخکې معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یزید بن عویمر ته وصیت کوي ورته وایي : **یا ابا عبدالرحمن اوصنا قال اجلسوني ان العلم والايمان مكانهما من ابتغاهما وجدهما يقول ذلك ثلاث مراتٍ** .

بیا یې وویل چې علم لټوي عویمر بن ابي الدرداء ته لاړ شي سلمان فارسي ته لاړ شي عبدالله ابن مسعود او عبدالله بن سلام ته لاړ شي په وصیت کې ولې دې خلکو ته وایي چې دې علماو ته لاړ شي که دې د تقلید د علماء منکر وای په فروعي مسائلو کې نه دي منکر وصیت خلکو ته کوي چې علماو ته مراجعه وکړي دا فقط د دین په مسائلو اعتقادیاتو کې دا خبره چیري .

هر چې تقلید په اعتقادیاتو کې دي دا مسئله نزاعي ده بعضې علماء جائز ګڼي بعضې ناجائز هغه کوم یې چې ناجائز ګڼي داد اسلافو قول دي ولې څکه هغه زمانه کې فلسفیان نه وه دهریان نه وه معتزله وو د فلسفې او منطق علم نه وه حاصل کړې مقابله دوي سره په حدیثو باندې وه نو دغه وخت کې اهل زیغ عقل نه استدلالات نه پیش کول ضرورت د علم

منطق او فلسفې نه وه د حديثو د فقه او د تفسير وه نو دې وخت کې د اد علم کلام مذهب هم نه وه نو دوي دې وجه باندې رد پرې کړې دي.

متاخرين علماء چې علم کلام کې تقليد د مذهبينو جائز ګڼي لکه د الفرق بين الفرق عبارت تير شو چې هغلته د اهل سنت والجماعت وه يو په کې متکلمين وه نو متکلمين دوه جماعته شول ابو الحسن اشعري ابو منصور ما تريدي ددوي دواړو تقليد چې په علم کلام کې کيږي دا په څه شي کې کيږي په تفصيل د صفاتو د باري تعالى کې کيږي چې فعلي کوم دي ذاتي کوم دي د ذاتي معنى څه ده د فعلي معنى څه ده د استطاعت په مسئله کې د تقدير په مسئله کې چې معتزلوو نزاع جوړه کړه دغې اصطلاحاتو کې دوي پسې ذهاب کيږي.

هر چې د ايمانياتو مؤمن به مسئله واخلي نو هغې کې خو تقليد جائز نه دي او نه ګنجائش لري ايمان بالله بالرسول بالملائكة په هغې کې به څه تقليد وشي او سړي به د چا پسې لاړ شي.

خلاصه دا چې کومو په عقيده کې تقليد ناجائز کړي دا سلف دي هغوي ضرورت نه وه ددې خبرو چا چې جائز کړي دا خلک دي هغه وخت کې اهل زيغو دا طريقه اختيار کړه او په ډيرو پيچيده مسائلو صفات الله وغيره کې خبرې شروع کړي دلته د متکلمينو مذهبين پيدا شول نو دا وروسته امت يا ماتريديان شول يا اشاعريان شول دوي پسې لاړل چې دغه اصطلاحات ياد کړي ترڅو د اهل زيغو مقابله پرې وکړي.

دا مسئله د تقليد وه خلاصه شوه ان شاء الله که څوک منصف وي متعصب نه وي وي ګوري اول نه تر آخره پورې ددوي د قول بطلان به ثابت کړي چې دوي خلکو ته دا نظر ورکوي چې بايد هر سړي طالب د دليل شي مونږ ددې سخت مخالف يو چې هر سړي طالب د دليل نه شي جوړيدې بلکې اعتماد به کوي او تسليم د قول د غير به بلا دليله کوي دغه معنى د تقليد ده.

او تاسو طالبانو کې چې کوم آزاد خيالي وي تاسو ته د نصيحت لپاره آخري دا خبره کومه چې ګوري تاسو بخاري شريف ويلي يا مو نه دي ويلي او غير مقلد شوي يو احاديث مو ياد کړي يا مو نه وي ياد کړي نو ولې په دې دومره امت بې اعتماده يې ددې امت په اسلافو کې لاړ شه امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ څومره لوي محدث دي او د څومره احاديثو حافظ دي چې يو څوک ترمذي وګوري او يو باب وګوري او بيا دغه باب په طحاوي کې وکتل شي

په څو چند زیات احادیث د ترمذي نه زیات سره د سند پیش کوي درته نو تا ته به د امام طحاوي حافظه معلومه شي چې ده ته دغه یو متن په څو سندونو یاد دي او په هغه متن کې چې څو مره تعارض وي څو مره په بنه شکل یې سره بیل کړي دي .

دا دومره لوي حافظ سره د دومره حافظې او دومره ذخیرې علمي نه دي د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مذهب ولې نه پرېږدي چې دلائل پیش کړي بیا دې وایي هذا قول ابي حنیفة وابي یوسف ومحمد رَحِمَهُمُ اللهُ دا څو مره ښکلي رایه ثابتوي چې تا د بخاري په ویلو او یو څو احادیثو په زده کولو مذهب پریښود ولې اعتماد نه کوي .

لږ وروسته راشه بدر الدین عیني رَحِمَهُ اللهُ ته بخاري باندې به ته ښه پوهیږې او که هغه ښه پوهیدو چې د بخاري په ۲ بابونو امین بالجهر او رفع الیدین په زده کولو دې مذهب پریښود هر څه ته دې شاګرړه ته د بدر الدین عیني نه ښه پوهیږې په بخاري باندې هغه د دومره ذخیري علمي او حدیثو سره مذهب نه پرېږدي .

همدغه شان ابن حجر عسقلاني نه ته ښه پوهیږې هغه سره د دومره علم او حفظ د حدیثو سره د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مذهب ولې نه پرېږدي .

خپله د ابن تیمیه نه ته ډیر ماهر یې په حدیثو کې هغه د دومره ذخیرې علمي او د حفظ الحدیث سره د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ مذهب ولې نه پرېږدي دا ابن قیم د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ مذهب ولې نه پرېږدي چې دا خروج د مذهب نه ښه کار وای لږ ښکته راشي فقهاء وګوري مرغیناني صاحب چې هدایه یې لیکلي ده چې ته یې د استاذانو نه دري (۳) ځل وو ایي بیا دې هم سر پرې نه خلاصیږي سره د دومره علم د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مذهب ولې نه پرېږدي . چې په دې مذهب کې دي له اصحاب تطبیق نه دي او چا د اصحاب ترجیح نه ګرځولې د مجتهدینو نه دي او بیا هم تقلید نه پرېږدي د امام صاحب مذهب یې کلک نیولې دي .

همدغه شان ابن همام صاحب فتح القدیر ته لاړ شه علامه شامي صاحب ته لاړ شه بحر الرائق ته لاړ شه دا پنځه سوه (۵۰۰) علماء چې دا تول العیاذ بالله کفار راټول وه چې فتاوی هندیه عالمګیریه فقه حنفي یې راغونډوله ولې په دوي اعتماد نه کوي .

د هغې نه ښکته راشه شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ شاه عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ شاه محمد اسحاق داد بې دینو کورني وي که د دیندارو کورني وي سره د دومره ذخیرې علمي د مذهب نه ولې

خروج نه کوي همدغه شان د ديوبند علماء ته راشه محمود قاسم نانوتوي رشيد احمد ګنګوهي اشرف علي تهانوي مفتي محمد شفيع محمود الحسن ديوبندي حاجي امداد الله مهاجر مکي دغه شان د بريل په علماو کې احمد رضا خان صاحب محمد يار خان نعيمي او نور علماء ددوي ولې مذهب نه پرېږدي سره د دومره علم نه

دغه شان او سني عصر ته راشه مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللهُ باندې ولې اعتماد نه کوي په شيخ حسن جان رَحِمَهُ اللهُ دې ولې اعتماد نه وه په شيخ اسرائيل ولې اعتماد نه کوي په شيخ ادريس ولې اعتماد نه کوي د ډاګي په مولانا صاحب ولې اعتماد نه کوي دا دومره علماء دي هريو ته ورشي هغه بخاري شريف چې تاديو استاذ نه دوه (۲) ټکي ياد کړه او مذهب دې پرېخوده دغه علماء دغه بخاري پنځوس (۵۰) کاله درس کړې ده څا څلويښت (۴۰) کاله درس کړې ده دغه شان مشائخ ددې دور علماء محدثين مذهب نه وتل چې ښه کار واي دوي ولې ترې نه وځئ.

نو په اسلافو چې اعتماد نه کوي او د وهابيانو مقصد هم دادی چې عوام په علماوو بد ګمانه شي بې اعتماد شي او هر عالم فتوی کوي او جاهل ورته وايي ما ته دليل پيش کړه همدغه مقصد کې دوي کامياب هم شول او دې حد ته يې خلک ورسول چې هر جاهل عالم نه د دليل مطالبه کوي د دليل په ټکي بيا پوهيږي نه دې بې اعتمادي ته يې خلک جوړ کړل داد انګريزانو هغه جال وه چې د اهل حديثو په لاس يې استعمال کړو.

شيخ زاهد الکوثري هغه وخت کې دا ويلي وه : **الامذهبية قنطرة اللادينية** ، چې خروج د مذهب نه دا د لا دينيت او د بې ديني پُل دي چې څوک د مذهب نه بهر شو د بې ديني په پُل روان دي منتهاء به يې په پاکستان کې قاديانيت وي او اخري سر به يې عيسويت وي همداسې وشول په افغانستان کې د پيچ په دره کې (۴۰۰۰) کورني عيسويان شوې دي ښکاره يې کليسې جوړې کړې دي دا هغه (۴۰۰۰) کسان وه چې د انقلاب په اوږدو کې د شيخ جميل الرحمن په تنظيم کې د وهابيت سره وه ننلګيا دي عيسويان شول.

ددوي دا ښکاره مقابلو ته مه ګوري او که څوک وايي چې دا خو د عيسويانو مقابله کوي امارت اسلامي سره جهاد کې شريک دي زه وايم چې دا شرکت يې هم امارت اسلامي سره فقط د جاسوسي لپاره دي ګنې تاسو د ګونتانامو ماتې زولنې د عبدالرحيم مسلم

دوست او د بدر الزمان بدر کتابونه مطالعه کړي چې دا اوس هم اهل حدیث دي لیکن د هغه د کتاب مقدمه وګوري د ګوانتانامو ماتې زولنې دا یې د اهل حدیثو په جاسوسي لیکلي دي چې دا جاسوسان دي او په هغې کې د حیات الله او روح الله چې د جمیل الرحمن وریرونه دي وایي داد امریکي خاص غړي دي او د زیاتو طالبانو ګرفتاري د دوي په لاس باندې شوې ده.

او بیا یې خپله واقعه په کې را اخیستي چې زه ګوانتانامو کې ومه او مقدمه وه زما پیشي کیده وایي چې زه یې روان کړم ومه او د هغه اړخ نه یې روح الله را روان کړ وه څه وخته پورې روح الله بندي وه او س خلاص شوې دي وایي ما ورته وویل چې و شرمیږه شرمیدلیه دلته جیل ته هم د جاسوسي لپاره راغلي یې وایي سترګې یې ټیټې کړې ماته یې جواب را نه کړو.

ګوري عبد الرحیم مسلم دوست خپله اهل حدیث جمیل الرحمن دې علاقو پاکستان افغانسان ته وهابیت چار او سته د جمیل رحمن د تنظیم لخوا خپور شو نو عبد الرحیم مسلم دوست د جمیل الرحمن د تنظیم د فرهنګ رئیس پاتې شوې دي او مسلم دوست خپله د جمیل الرحمن د وراره په جاسوسي باندې قائل دي او په خپل کتاب کې یې اقرار کړې دي.

ځای په ځای چې کوم ځای کې جاسوسي کیږي دا به اهل حدیث کوي او دا د برطانویانو امریکایانو هغه عظیم جال دي چې مسلمانانو کې خپور شوې دي دا نه متدین اشخاص دي نه د دین د اشاعت والا خلک دي فقط په مسلمانانو کې د تفرقې اچولو لپاره یو عظیم جماعت او کافرانو د اهل حدیثو په لاس د مسلمانانو په کور کې کور جنګې باندې عظیمه کامیابي حاصله کړه او په هر کور کې ځوي د پلار سره وجنګوه پلار د ځوي سره امام د مقتدي سره مقتدي له امام سره .....

کور په کور دومره جنګ جوړ دي چې برطانویان او عیسویان په ځای ناست دي او تر قیامته پورې به دا اختلاف روان وي او دا به نور هم سره لوي کیږي او کمیږي به نه نو مسئله د تقلید مهمه مسئله ده داشموو نه چې قول درته پیش شي څون چرا په کې مه کوي په کلکه یې تائید کوي دا بې دیني نه ده بلکې دین دي همدغه دین پسې ځي همدغه لاره د نجات ده.

د لوي څښتن په مرسته مسئله د تقلید خلاصه شوه

